دکتاب نوم : ځړیکی
شاعر :ملا اسد الله (حنیفی)
د چاپ شمیر : (۱۰۰۰) ټوکه
د چاپ کال : ۱۳۶۹ هـ ،ش د لړم میاشت
کمپوزر : مامور علیجان (سلطانی)
د چاپ مسئول : ملا در محمد (گوهری)
خپرونکی اداره: د جمیعت طلبه حرکت انقلاب اسلامی افغانستان فرهنگی او مطبوعاتی انجمن

دکتاب نوم : څړیکی

شاعر :ملا اسد الله (حنیفی)




د چاپ شمیر : (۱۰۰۰) ټوکه

د چاپ کال : ۱۳۶۹ هـ ،ش د لړم میاشت

کمپوزر : مامور علیجان (سلطانی)

د چاپ مسئول : ملا در محمد (گوهری)

خپرونکی اداره: د جمیعت طلبه حرکت انقلاب اسلامی افغانستان فرهنگی او مطبوعاتی انجمن



# بسم الله الرحمن الرحيم

## اهدأ




د افغانستان ټول مؤمن ولس ته، د اسلامی
انقلاب ټولو دردیدلو برخه والو ته په تیره
بیا د اسلامی ادب گردو مینه والو ته

والسلام

# له شاعر نه

دلته دی اثر کی می‌ززه او ځگر ځړیکی دی
دلته له جفا د ناسور شوی پرهر ځړیکی دی
دلته نه ساقي شته ده‌نه خم شته نه پیالی شته دی
دلته ټولی ځړیکی دجهاددځگر ځړیکی دی

دلته دویدو زړو ویښه ول او تخنه ول په کی
دلته د احساس را پاره ول او خوځول په کی
نه په کی خوبان شته نه نغمي په کی د مینی شته
دلته د مؤمنو پرګنو بیدا رول په کی

دلته فریادونه دی ژړا وي دی ویرونه دي
دلته د مظلوم ولس د حال حکایتونه دی
نه دلته خوښی شته نه قلم خوښی لیکلی ده
دلته ټول دردونه د ي ناخوالی دی غمونه دی

۱۳۶۹/۶/۱۹

جهاد ګلی

4

## هغه محترم ورونه چی پدی کتاب یی لیکنی کړی دی

| گڼه | | مخ |
|---|---|---|
| ۱ | محترم مولوی عمادالدین د جمعیت طلبه حرکت صدر | لومړی |
| ۲ | محترم مولوی فقیر محمد خنجری د جمعیت طلبه فرهنگی آمر | څلورم |
| ۳ | محترم فضل ولی (ناگار) | پنځم |
| ٤ | محترم شهرت ننگیال | درلسم |
| ٥ | محترم ملنگیار | څوارلسم |
| ٦ | محترم ربیع الله (مجددی) | ولسم |
| ۷ | محترم محمد اسحاق (نظامی) | نولسم |
| ۸ | محترم أمان الله (نصرت) | یوویشتم |
| ۹ | محترم ملا در محمد (گوهری) | درویشتم |

بسم الله الرحمن الرحیم

زه په دی ویاړم چه للهالحمددجمعیت طلبه حرکت انقلاب اسلامی په گلشن کښی داسی تلبا زه او ښایسته ښایسته گلونه راټوکیږیچه په خوشبویی یی افغانستان څه چه ټوله اسلامی نړی معطره ، او ددوی دقلمي آثارو په برکت دهرښا درده او ښا درکه مسلمان دماغ تازه او زړونه یی پری خوشحالیږی نوازی دانه چه زړونه یی خوشحالیږی بلکه له هغه نه الهام اخلی .

له دی اسلامی او مذهبی بڼ څخه یونوی راټو کیدلی تازه گل طالب العلم اسدالله (حنیفی) دی ، اسدالله ( حنیفی) که لهیوی خوا خپل زیاتره عمرددینی علم په زده کړه کښی تیرکړخوچه کله په افغانستان کښی دالحادلمن راخپره شوه نوئی وسلوال جهاد ته ملاوتړله چهددی ترڅنگ یی خپلی قلمی مبارزی تههم په ډیره پیاوړتیا اولیوا لتیا دوام ورکړ ،چه دجمعیت طلبه حرکت په مرکزی دفترکښی یی دیادونی وړخدمتونه ترسره کړل.

(حنیفی) صیب دادب په ساحه کښی چه څومره مهارت او بصیرت لری غواړی چه هغه ټول دمجاهدینو او مظلوم وولس خدمت کښی وقف کړی په همدی سلسله شپه او ورځ په دی هڅه کښی دی ترڅوخپله شعری قوه دمسلم وولس دویښتیا په غرض پهجهادی او حماسی شعرونوجوړولوکښی پهکاروا چوی او اسلامی ټولنی ته دخپل توان او استعدادپه درلودلوسره ښه خواږه خواږه شعرونه وړاندی کړی .

# دوهم

داجوته ده چه له نثرڅخه نظم ډیرموٴ ثر
وی لکه چه ویل شوی دی .

النظم ابلغ من النثر

بیا دا رنګه حماسي شعرونه خوډیرزردوګروپه
زړونوا ثرغورځوی دیوه فردپه لبوستلوسره لوستونکی
دیته رابولی چه ټول کتاب ولولی .
څکه چه دا رنګه شعرونه دهرمظلوم دزړه دخړیکو
هنداره ده ددی شعرونوپه هربندکښی دمظلوم
ولس دزړونوخړیکی ، آهونه اوفریادونه پیچلی
دی .
ماده شعرونه څه ناڅه ولوستل واقعاً چه دادب له
لحاظه خورا ښه اودا سلامي ټولنی له پاره داستفادی
وړووده دا شعرچه وایی :
زمونږجها ددی چه له خوبه جهانیان ویښوی
الهام ببنونکی دی هرلورته موٴ منان ویښوی
وینه یی ګرمه کړه رګونوکښی دهروګړی

دآسیا زړه نه زمزمه شو آذریان ویښوی

راپاڅوی راخوځوی راوبښوی پرګنی
دهندپه وراندی دکشمیردغروبا زان ویښوی

هلته پاڅون، دلته پاڅون، ټوله نړی شوه ویښه .
دکمون بوټی ورکه وی اروپایان ویښوی

زماپه زړه ډیره اغیزه وکړه زماپه زړه کښی یی
ددی مینه پیداکړه ترڅودجمعیت طلبه حرکت له
لوری دده دشعرونودغه مجموعه چه ستاسوپه لاسونو
کښی ده چاپ اوتکثیر شی څکه چه له یوی خوابه

دحنیفی صیب ځوانه او انقلابی جزبه لاپسی ګړندی
شی او له بله پلوه به دده له دی شعری اثرڅخه
مسلمان وګړی ګټه واخلی ، نوپه همدی منظور
موددی بیش قیمته کتاب په طبع کولو لاس پوری کړ.
زه له هرمسلمان اوپه تیره بیا له هرطالب
العلم څخه غواړم چه خپلی جها دی جزبی لاپسی
ګړندی کړی اودهررازدښمنانودسیسوته په پوره
متوجه اوویښ واوسی اوپری نږدی چه دښمنان
خپل ناولی پلانونه زمونږ ترمینځ خواره کړی .

واالسلام

( مولوی عماد الدین دجمعیت طلبه حرکت عمومی
صدر ) تاریخ ۱۳۶۹/۷/۲۲

# څلورم

اسدالله ( حنیفي) چې په شعرا وشاعری کښې ړومبی قدم کښېښود ما به دهغه شعرونه کتل سره له دې چې نوموړی یوا بتدائی طالب العلم ؤ خوپه اشعا روکښې ئې سوزا ودردله‌ورا یه‌ښکا ریده ما به‌ورته دا شعا رودا دامې توصیه کوله‌اوپه ځنې اوقا توکښې به‌مې دده دا شعارو غزلونوا ومقا مونو اصلاح هم کوله ولې کله چې په‌ګرا ن هیوا دکښې دروسا نوپه ملاتړ خونړی کودتا وشوه‌او زړونه‌یې په ځړیکورا وستل اووحشي کمون دبیکناه انسا نا نو دوینوڅخه سیلابونه وبهول حنیفي صا حب هم‌دخال اوخط جا م اومی له شا عری څخه لاس‌په سرشودقلم څوده‌ئې دجهادی موضوعا توپه‌لوررا واړوله‌دده اشعارچې په ( ځړیکې ) کښې ذکردی ځما له نظره تیرشوی دی واقعا" په هغوکښې درد، ځوګ ، شور اوسوزشته دی له ټولو لوستونکوڅخه دااُمیددی چې ددی مجموعې څخه استفا ده وکړی .

په‌درنا وی

ستاسوورور مولوی فقیرمحمد ( خنجری) دجمعیت طلبه حرکت دفرهنګی کمیټی آمر

# جهادي ادب او څريکي

لکه‌څنګه چې زموږ جهاد یوا ځی زموږ لپاره نه
بلکې د ټولې نړۍ لپاره د الهام خوږه پیلامه
وګرځیده ،په همدې ډول د دې جهاد غیزې د خپل
خط السیر دننه ډیرې بنسټیزې وختې .
او هغه پدې ما نا چې په ګرد ادب او بیا په تیره
په شعر کې یو ژور بدلون را منځته شو . د روا یت
ګړي ما تې شوې ، او شاعر د خپل نوي پیغا م سره
د میکروا و بتکدو نه را ووت . زمونږ تیر ادب که ښه
وڅیړل شي ، نو د جاهلیت نښې نښا نې پکې له ورا یه
ځرګندیږي .دا بیله خبره ده ،چې افغا نا ن جنګیا لي
او ننګیا لي ولس دی ، د هغوی غیرت او حما سې هم
د هغوی د شا عرا نو په شعرونو کې منعکس شوې دی .
د مثا ل په ډول که تصوفي ادب وڅیړو ، نو پرته له
اصلاحي نښو نښا نو پکې د تحرک او خوځښت هیڅ بوی نه
لګي . روښا نې تحریک چې د ډیره موده یي مغولي
امپرا توری نا آرا مه کړې وه ، پخپله د روښا ن
د پیرو لبندو ملګروا و مریدا نو په اشا رو کې د دغه
غورځنګ نږدې یا د ښت قدري هم نه دی شوې .د افغا ـ
نا نو جنګي تشخص او انقلابي هلې ځلې یوا ځې
د خوشا ل با با با په اشعا رو کې موندل کیږي ، او له
بده بخته چې هغه پر علما وپوهه سر بیره د دغه ډګر یو
ننګیا لی قوما ندا ن هم و . که څه هم زموږ د ادب ،ا ر
ز ښتنا کې تذکرې "پټې خزا نې" د غوري دور د نو ـ
میا لیو شا عرا نو خوا قصدي ثبت کړي ،چې د نوعیت له

مخي ديري خوځندهاوحماسي وي ، خومتاء سفا نـــــه
چي لـه دي قصيدوا ود"ا مرکرووړ" لـه‌ا تلي سنـد ري
پرتـه لـه نورخه‌لاس‌ته‌ندي را غلي خبره‌مودنـز دي
ما ضي دا دب‌کولـه ، زموږپه با سوا دوا وپه ا صطـلاح
روشنفکروشا عرا نو هم دشلمي پيړي دنوي جا هليـت
پوره ا غيزه پريوتي وه ، ځه خوشعوري وو،ا وځينو
دوخت ددغي مسلط جريا ن په ا غيزي دي ډگرتــــــه
وردا نګلي وو ، که عشقي غزلي به‌وي ، نودا ســــي
به‌وي چي :

نيمه‌شپه‌مي را غلله‌کوټي ته‌يوځلي

ا وکه روشنفکري شعرونه به‌وو ، نو:
لـري لـري ، ملا لـري

دا يوجا رح جريا ن وء ا ولـه‌پوځي يرغلـه‌يي ړومبـــي
زمونږپرا دب را منډه‌کړي وه ، ددي ا دب دوه‌مهـــم
سمبولـونه "ملا" ا و"رند" وو ،ملادتولـني مذهبـــي
نما ينده‌وه ، ا وپه همدي توربه غندل کيده ،خوپـــه
مقا بل کي يي " رند" هغه‌بي دينه سمبول وء ،چـي
گردسره ا خلاقي پولـي يي نړولي وي ، ا وهره‌گنـا ه
به‌يي دشرا بوغوندي رنگينه‌ا ومرغوبه گڼلــــه ،ا و
دټولـني حسا سي پديدي ا ودملاتير"ځوا نا ن" بـــه يي
ورگوما رل .

خولـه سه بخته‌زموږا نقلابي ا سلامي پا څون لـه‌يـــوي
مخي ددغه ډول جا هلي ا فکا روا وخيا لاتوصفا يـــــي
وکړه ، ا ونن چي مونږکوم کتا ب ( همدا ځريکـــي،
لـولـو ، نوگورو ،چي شا عرددغه جريا ن دا فکا ر وا و
جوړښتونويونما ينده شا عردي ، ا ودولسونولپـا ره

## اووم

دورانسازی شاعری کوی .دا شاعرزمونږ محترم
ورور" اسدالله حنیفی) دی چی متعهده شاعری
کوی ، اوله خدای (ج) نههم غواړی چی :

زه عطا جز بیم دا زمینبت وسهمی نشته
ته توفیق دا بتلاء او امتحان را
چی کاته می دحرامو په لورنهوی
الهی (ج) دا سی نظردا سی چشمان را

اوراځی چی " ځیرکی" دهمدی ځوان او متعهد
شاعرله خولی وپېژنو.

دا هرهځیرکه دملت دزړه له تله ځینی
را ولاړیږی تری جوړیږی دغمونوځیرکی
دهربا درده باا حساسه بدن ځیرکی وهی
دا دیتیم دزړه دوینو اوښو نوځیرکی
ما مخکی عرض وکړ ، چی جها دی ادب دروایت کړی
ماتی کړی ، اودامکه چی دنن شاعرلههری پیښی
سرهتیغ په تیغهلاس! وگریوان دی ، هغه ته
دتشبیهاتو ، کنایا تو او یا په نالازمه التزام
( التزام مالا یلزم ، اعنات ) کی دځان اچولو
ضرورت نهمحسوسیږی ، نوځکه هم پتمن شاعرخپل
غزل دتخیل له کړلیچو نوراوباسی او په ړانگ
پیبلی وایی :

کهغواړی چی خپلوا ک شی دالحا دکړی کړه مانه
همت درسره مل کړه حماسی درسره وړه
مسلم ځواکونه یوکړه چی طاغوت پرمخی پریوځی
دنیا کړهورته ورانه زلزلی درسردوره
( حنیفی ) صاحب پرشاعری سربیره دهگر
اتل هم دی ، هغه کهپرالحاد دشعرتوره پرکولی،

نوله سنګرنه يې هم پر لحا دي تبا ري خپلې رڼې مرمې وروليدي . دا خومره دپا ملرني او وحتی دحبرا نتیا ورده ، چي زموږ خوا ن نسل ددې پر ځای چي سينما اوبا نوردعيا شي ګا يو نونه لاړشي،جومات اومورچل ته ځي ، او"حسبفي" پکې لابيا آن منبرته خيزي ، اودا نفلاب شبلي پوکوي اودا خطا رپه ژبه وايي :

چي ته دخپل مسبرنه کوږ شوی دغليم په ليکه دملت نوال نه ځواب ورکړه فيصلي دي څه شوی؟

شا عري ليوني بوهه ده . حنيفي صاحب هم ځوا ن دي هم ليوني اوهم روښا نفکره ، ځکه کله کله دا سي خبري کوي ، چي کول يې آسا ن کا ر نه وي . دحنيفي صاحب به ځريکوکې نظمونه او دشعرنوري سلګې هم شته، خوما يې په همدې غزلو اکتفا وکړه نو رنه يې نه سنا يم . ځکه بيا خداي(ج) مکړه ، نردې شه شعرونه بدنه وا يي ،اوپه همدې به بسيا شي حنيفي ځوا ن دي ، دشا عري ورغ يې پورته ده، زه ورته دلوی حداي (ج) له دربا ره دقلمي جها دلانوردې اونيزي غوا ړم ځکه په مونږ کې دېزوخلک ډيرډي خودقلم لرپه حداي (ج) سپا رلي

فضل ولي نا ګا ر نيتهه ۱۳۶۹/۶/۲۶ هـ ش

# څریکی د جهاد یو بنه اثر

دځوان شاعر او حساس لیکوال محترم اسدالله ( حنیفی ) اثرچه د ( څریکی ) په نامه دی ما ولوست هسی خو ما دده شعرونه ، ادبی پارچی او نور په مختلفو جریدو او خبارونو کی لوستی دی خو په داسی مجموعی توګه نه .

دده په اشعارو کی دوطن په مینه برسیره یوه اسلامی جذبه لیدل کیږی چه په ربښتیا سره هر موْ من وګړی ورکښوی . دده شعرونه ډیر روان ، پاخه او سلیس دی هغه چه وایی ( آثارنا تدل علینا ) دده شعرونه دده دپاک احساس او ایمانی جذبی ښه ترجمانی کولی شی اودشعری تلازماتو ، تشبهاتو استعاراتو او نورو په لحاظ هم دی داد ب په میدان کی بریالی وتلی دی .

په ربښتیا سره چه شعر دزړه احساس دی ،دفکر ترجمان دی او دټولنی انځورا و تمثیلوونکی داوس وخت جهادی شعرونه که ډیری پیږی وروسته څوک ولولی نو په هغوکی دافغانانو قهرمانی او مظلومیت او دروسانو بربنډتیری او دهغوی داستعماری پلانونو طرحه به ښکاره ښکاریږی . شعر هغه دی چه له زړه څخه راولاړشی او په زړونو باندی پریوزی ، شعر د انسان داحساس دسرچینی زیږنده دی او دټولنی دژوند منعکس .

ما په یوه قطعه کی دشعر داسی پیژندنه کړی ده چه :

لسم

شعرنه دی دزړه وینه بل څه نه دی
دځپلی ولس مینه بل څه نه دی
را تول شوی حقائق دی که یی گوری
وهرچا ته خبر سپینه بل څه نه دی

کهسړی لهحق څخه سترگی پټی نکړی نو محترم حنیفی دا دب دجها دپه ډگرکی ډیرکا رکړی دی ، دا سی شعرونهیی ویلی چه دیوه موء من افغا ن ځوبن پری کښینی ا ودده شعرونه هرڅوک خوشوی همدا خبره ده چه شا عریوی کورنی ته منسوب نهوی بلکه هغه دټولی جا معی ثروت ا ودا را یی کښل کیږی .

دده دا ا شرچه ( څیرکی ) نومیږی وا قعاً چه ا سم با مسمی دی په دی کی دا فغا نستا ن دمسلما ن مظلوم ملت څړیکی نغښتل شوی دی . دده شعرونه ا نسا ن دصحا بهوء زما نی تهبیا یی چه ا سلامی شا عراً نولکه عبدا لله بن ا بی روا حه ا وحسا ن بن ثا بت دا سلامی ټولنی ا ودجها ددپیا وړتیا دپا ره څومره لوی خدمت کړی دی .

ا ړددوی شعرونه دخدا ی رسول صلعمستا یلی ا وهغوی تهیی دبرکت دعا ء کړی ده .

دده څړیکی هم ددردځخه ډکی دی ، سوز ا وگذا ز ویره ملگری دی ، ا ودا څړیکی یوا زی دا فغا نا نومظلومیت نهبیا نوی بلکهحما سی رنگ هم لری چه دا فغا نا نومیړنتوب ا وقهرما نی هم ستا یی ددی څړیکودمظلومیت ا وحما سی رنگونوڅخه بهدغه بیتونه را وا خلو:

دهربا دردده با ا حسا سه بدن څړیکی وهی

## پوولسم

ځریکـــی دی څریکـــی هوسنګرا وهرډګرکی ځریکـــی دا دموږ منوپرګعنوا وولسونـــو څـــــریکـــی

نوزه په دی لنده کره کتنه اکتفاء کـوم ا وزلـمی شا عرښا غلـی حنیفی صا حب ته چـــه دا د ب دمیدا ن ا سد ( زمری) ګنهل کیږی نورهم تـوفیـــق ا وبری ورتـه غوا ړم ا وددی لـویی ا وښا یسته شکلـی محموعی تـبریک تولی ا فغا نی تولنی تـه وا یم.

وا لـســــلام

عبدا لـبا ری ( غیـــرت )

۱۳۶۹/۷/۵ هـ ش

bf

دولسم

# څریکی

تیرشوم تیرشوم زه‌له مالــه‌ا ولــه سـرنـه
( خو ) ته‌تیرنه‌شوی له خپــل شخصــی نظرنـه

دوروورحنیفی شعرونه په مجموع کی زمـــوږ
دمجاهدا وقهرما ن ولس دژوندا ومبا رزی هیره‌رسا
عکا سی ا وترجما نی کوی ددوی شعری سفر قدم په
قدم دخپل ولس له‌حما سوا وحا دثو ، قهرما نیــو
ا وکړا وونوسره غبرگی غزونی کړی ا وپل په‌پــل
ورسره پدغه سفرکی‌مل را روا ن دی .
ددوی په شعرونوکی ویا ړنی هم شته ا وویرنــی
هم ـ که‌یوی خوا ته دخپل قهرما ن ولس پرقربا نیو
ا ومبا رزو ویا ړی نوبل خوا یی په‌څریکوا وکړا وونو
ژا ړی هم ـ که‌دخپل ولس سرښندنی ا ومقا ومت ستایی
نودمشرا نودبی ا تفا قی ، خودخوا هی ا وبی تفا وتی
غندنه‌هم کوی په جا رغندنه‌ا وپه‌وا زکومی غندنــه .
دوروورحنیفی شعرونه دیوه فا تح ا وسرلــوړی
ولس دژوندا ومبا رزی دبیلابیلوا ړخونودا سی روا نـه
ترجما نی کوی چی دملت فردفردپه‌هغوکی هم‌دخپــل
زړه څریکی" وا رما نونه لیدلی شی ا وهم دخپلــو
قربا نیوا وسرښندنوتلپا تی تصوپرونه‌ا ویا دگا رونه .
موږوروروحنیفی ته‌دلازیا ت توفیق دعا کوو چــی
دخپل ولس دمبا رزی ا ومقا ومت په‌را بطه دخپلــو
ا دبی تخلیقا تولمن نوره هم پرا خه ا ودخپــــل
مجا هدولس حما سی ا وسرښندنی ا بدی ا وجا ودا نــی

دیارلسم

وگرځوی .
په قلم یی برکت شه ـ ملینه‌ا و درنښت
( شهرت ننګیـــا ل )
۱۳۶۹/۷/۱۵ هـ ش

cb

# شعر او شاعر

شعر د شاعر د احساساتو انځور او د هغه د لوړو او عالي
افکارو رزښتناکه پانګه ده .

لیکوال ، ادیب او شاعر د خپلې ټولنې د حالاتو
څیړونکی او ویبندوی دی . که سترګې وغړوو ګورو چې
په هره زمانه کې د پېښو بهیر دوی خوندي کړی
او پخپله وګوتو یې تاریخ ته شپارلی .

شاعر او لیکوال په ټولنه کې د ژبې مثال لري
لکه څنګه چې ژبه په ټول بدن کې د ویلو دنده لري
شاعران او لیکوالان هم د خپلې ټولنې د هرراز حالاتو
پېښوویونکي ، ښکاره کوونکي او بیانوونکي
دي .

کله چې زموږ پر ګران هیواد روسي استعمار
تیری او یرغل وکړ د افغانستان مسلمان ملت
د خپلو پاکو وینو په رزښت د وطن اسلامي نوامیسو
پت او خریت ساتنې ته چمتو شو او په دغه لاره کې
یې خپل مرګ ( شهادت ) یو الهي سوغات وګانه
د دې خاورې د ادیبانو او لیکوالانو عالي افکار
د مجاهدو غازیانو د میړانې لپاره سرلیک شول
د اسلامي انقلاب لیکوالو ډلو د خپل دین او هیواد
د آزادۍ په لار کې د عقیدت شمعې ولګولې او د اسلامي
جهاد سوچه سنګرونه یې پرې روښانه کړل .

مجاهدو لیکوالانو د اسلام د سپېڅلي دین په
لاره کې په یوه لاس توره او په بل لاس قلم په ګوتو
ونیوه او د دې رنځېدلي ، او کړېدلي مسلمان ولس

ددردونـوا وزخمونـولپا زەئـي دعلاج پـټـي جوړي كړي.
دا مينـه دآ زا دي مينـه‌ده دي وا يي.
چي وي مين هغه لـه يا ره تـيريدلي نه‌شي
څوک چي آ زا دوي ا سا رت دچا منلي نه‌شي

ا نسا ن چي كلـه خپل ا نسا نـي مقا م‌وپيـژني
نـوبيا دنفس‌ا وشيطا ن دښمنـي تـه را ولاړيږي خپلـه
آ زا دي ، دپا ک خـﺅاي (ج) پـه‌بـندگي كي گـوري
دژونـدترپا يـه دا سلام‌دسپيڅلي دين قوا نين خپلـه
ا سا سي دنـده بولـي ا وهم دقرآ نـي ا حكا موپـه‌رڼا كـي
ځا نـتـه لارلټوي ، دنفس‌لـه غوښتنـوسره مبا رزه‌كوي
نا روا گټـي ا وقـدرت تـه‌رسيدل غندي چي حنيفي صيب
هم پـه دي بـرخه‌خپل ا حسا س دا سي بيا نـوي .
څوک پريشا ن ا و لـيونـي شول دقدرت پـه مينـه
څوک سپيلـنـي لـوگي لـوگي شول ديا نـت پـه مينـه

دديا نـت پـه مينـه‌لـو گي كيدل خوشها دت دي كـومـو
كسا نـوچي پـه دغـه لاركي ځا نـونـه‌شهيدا ن كړيـدي
هغوي ا بدي ژونـدتـه رسيدلـي دا ځكه چي لـوي خـدا ي
(ج) دغا زيا نـوپـه ډلـه كي شهيددغه مقا م تـه‌ټاكلي
وي نـوزموږوروردا لارخوښوي ا وهم پرنـوروشا عرا نـو
دا غږكوي .
وا وره شا عره مينـه پريـږده دخوبـا نـو سـر ه
دتكبيرچغي بـدرگـه كـړه دغا زيا نـو سـر ه

دا سمه ده‌چي دغا زيا نـوسره دتكبيرپورتـه‌كول عملي
زيا رغوا ړي ا لحمد للـه زموږمجا هدملت دغا ن پـه

# شپاړسم

قیمت دا عملی گام پورته کړدتکبیر چیغه یی
دعمل په ډگرد دنیا غوړونوته ورسوله او
ددښمن مقابلی ته په کلبکه ودریدا ولاترا وسه
پری دا غړکوی .

که می بلی په ټټر باندی لمبی شی
یا می غوښی په چړو کتری شی
مسلمان یم چاته ټیټ کتلی نه شم
که می بندپه بند بدن اری اری شی

له پورته نظم ښخه دمسلمان کلک دریځ ددښمن
په وړاندی ډیرښه بریښی اوهرمسلمان ته پکښی
دا ښوونه ده چی دا سلام په سپیڅلی دین مرگ
شها دت او ژوندجها ددی .
دا دی دحنیفی صیب ددردونو ( څیریکی) نورتا سو ته
سپارم دا تا سی دا هم دحنیفی صیب څړیکی .

والسلام

# بنام جهاندار جان آفرین
# حکیم وسخن برزبان آفرین

اثر منظوم برادر ارجمند محترم (حنیفی) صاحب قرار است طبع گردیده وبمعرض استفاده علاقمندان شعروادب اسلامی قرار گیرد.

مشخصات اثر مزبور عبارت از این است که مدون آن ازخیل طلبای دینی کشور است ودست پرورده علمای مجاهد وروحانیون مبارز کشور ما افغانستان اسلامی بحساب می آید.

ظهور چنین اشخاص با یک چنین استعداد ازآنجهت حائز اهمیت بسزایی است که ملت متدین ومبارز افغانستان به علمای مذهبی وطلبای دینی کشور اخلاص واحترام عمیق دارد - وگفتار ونوشتار شانرا عاری از انحراف تلقی میکندودر ابعاد مختلف زندگی آنها را مورد اقتدای خویش قرار داده است وبناء سی ازاین حقیقت اثر حنیفی صاحب نیز مورد علاقه، دلچسپی واستفادهٔ هموطنان موءمن ما قرار خواهد گرفت هرچند اکثریت ملت مجاهد وموءمن ما از نعمت سواد محروم اند وبه همین علت نویسندگان، شعرا، وبخصوص نویسندگان وشعرای مسلمان بین ملت مسلمان ما در اقلیت قرار دارند، ولی نسبت به سایر طبقات ملت با ایمان ما طبقهٔ علما وطلبای دینی ومذهبی کشور ما هر چه بشتر به قلت شعرا ونویسندگان مواجه اند وبه وجود آنها

اتلسم

شدیدا " نیاز دارد بنابراین عرض وجود کردن هرشاعر ونویسنده ای چون (حنیفی ) صاحب درمیان این طبقه گامی است درجهت رفع این نیاز . مندی .

تدوین اثرمنظوم برادر ( حنیفی ) صاحب بنوبه خویش منعکس کننده‌ٔ قهرمانیها ، حماسه‌آفرینیها وفداکاریهای ملت مؤمن وشهادت شعار افغانستان وبازگوکننده‌ٔ وحشت درنده گری تبهکاریها ، بیدادگری وجنایت‌گری امپراطوری روبه انقراض روس وعمال ملحد داخلی آن علیه ملت شهید پرور وطاغوت براندازماخواهدبود .

بنده ضمن فراخواندن هموطنان مؤمن ومجاهد خویش به مطالعه‌ٔ این اثر سودمند از آفریدگار توانا موفقیت مزیدی رابرای شاعرجوان کشور محترم حنیفی صاحب در ایفای مسئولیت های اسلامی شان استدعا دارم .

ربیع الله مجددی (۲۹ـ عقرب ـ سال ۱۳۶۹

# نولسم

درنولوستونکوا سلام علیکم :

کله‌چه‌ومی غوښتل"دځریکې" دشعرونودمجموعې په ارتباط یوڅه‌ولیکم نوددی لپاره‌چه‌په هرکتاب پەتیره بیا دشعرونوپه کتابونو اوبیا په‌هغی کی په "ځریکی" یوڅه‌لیکل څه‌اسانه خبره‌نده‌خدای"ج" حاضردی چه په دووکی حیران شوم یوخوا ته‌ځما دا آرزوچه باید یوڅه ولیکم‌اوبل خوا داچه‌که‌هرڅومره اوهرڅه‌ولیکم دابه لدی نه‌دیرټیټ‌اونیمگړی وی چه مابه لکه‌څنگه چه ښائی د"ځریکی" شعرونو په‌اړوندکماحقه توصیف‌اوتائیدکړی وی .

خو دومره ویلای شم چه وروسته لدی چی د "ځریکی" شعرونه می ولوستل دی نتیجی ته‌ورسیدم واقعا" چه‌ځریکی دحنیفی صاحب دنازک احساس زیږنده‌اودخوږ‌من زړگی آواز دی چه دشعرپه بیلابیلو ښارونواوکوڅوگرځیدلی په‌هرباغ اوگلزار ئی نغمه سرائی کړی اوله هری څانگی اوښاخ نه ئی گلونه راټول کړیدی چه دشعردیوه ځانگړی لاری پیرونه‌بلکه دشعرونوپه‌گڼو لارو اوگودرونو بلددی اوهم گران لوستونکی به‌هغه وخت د "ځریکی" دشعرونو سره‌ښه‌اشناشی چه یوځل نه‌بلکه څوځواره د( ځریکی) دشعرونوپه‌لارو اوکوڅو ښارونواوگودرونوکی وگرځی راوگرځی اویوڅه داحساس له‌مخی نه‌ئی په غوراودقت سره‌مطالعه کړی برسیره پدی چه‌زه‌ئی وواېم پخپله لوستونکی به‌دی حدته ورسیږی چه د( ځریکی) دهرشعربند اوبیت دباطل اوباطل پرستانو په‌وړاندی دحق اوحقیقت ځریکه دتوروتیاروا وترگمو جهل اونا۔

شلم

پوهی پهوړا ندی درون سبا وون او لمرخړیکه او دهر
با احساسه انسان ضمیرته دتحریک او حرکت خړیکه
ده .

زه دګران حنیفی صاحب لپاره برسیره پردی
چه دلوی او توانا خدای (ج) څخه ئی دصحت او
خوشحالی غوښتونکی یم دمقدس جهاد دفرهنګی
مبارزی پدی حساس سنګرکی لابریالیتوب غواړم
والسلام علیکم ورحمت الله وبرکاته

( محمداسحق (نظامی)

۱۳۶۹/۶/۱۸ هـ ش

# خڅريكي

خڅريكي دانقلاب دځوان اوحساس شاعراسداللـه (حنيفي) دشعرونومجموعه ده‌چي زمونږدروان جهاد اومقاومت اوزمونږداتل ، ميړني اوخداي پرستـه ولس دقربانيو ، سربښندنواوقهرمانيوعكاسي پكـي شوي ده داده‌غو دردونواوپرهرونوڅريكي دي چـي دروسانودوحشيانه يرغل اوبي شرمانه‌تيري پـه نتيجه‌كي زمونږدولس لـه زړونوڅخه‌پورته شوي او بيا يي دوينوپه توده غيږكي دتوپانونواوقيامتـو نويوه لويه دنياكي جوړه‌كړي ده.داڅريكي ديـو دردمنداوزوريدلي انسان دزړه‌څريكي دي دڅونـد يواوتازه زخمونوڅريكي اوددين اووطن په‌مينـه دسوزيدلوتنواواندامونوڅريكي .....

دبناغلي (حنيفي) دشعراوشاعري بسم اللـه وده اوغزوني دجهاداومقاومت په‌غيږكي شوي ځكـه خوشاعري يي مقصدي اوهرفمنده شاعري ده او د ژوردرد ، ژوندي احساس اوسپيڅلي هدف څخه يي سر چينه نيولي ده نوپه زغرده‌ويلاي شوچي ښاغلـي حنيفي يودردمنداوخوږمن شاعردي اودجهاددځوانـو شاعرانوپه ليكه‌كي دډريدوحق لري .

[illegible] اوتانده شاعري چي دودي او [illegible] حال كي ده سري په‌پوره‌يقيـن

دوه ويشتم

سره دا ويلاى شي چې كه‌هغه همدا سې خپل ا دبـــي
زيا را وهڅوته‌ا دا مه وركړي نودبـړتـگ دروا زي ورته
خلاصي دي ا ودبيرژ ربه‌دپخوشا عرا نوګتنا رته‌و رسيـــږي
ا وپښتوا دب ته‌به . دقدروړخدمتونه‌وكړا ي
شي .

زه‌دحنيفي صا حب دا دبي شخصيت په‌هكله دبيرڅه
ځكه‌نه‌ليكم چې خدا ي (ج) مكړه په‌خپل قضـــا وت
ا وسنجا وت كي را نه‌تيري ا وتيروتنه‌ونه‌شي خودهغه
دفرهنگي كوښښونو ا وقلمي جها دا ومبا رزي ستا ينه
يولازم ا ومنا سب كا رګڼم ا وستركي پټول به تـــري
پوره‌نا ا نصا في ا وظلم‌وي .
هوكي ، هره‌هغه هڅه‌چي دجها دا ومقا ومت دبريـــا ـ
ليتوب په‌لاره كي كيږي په‌خپل ځا ي ښه‌ا ودقـــدر
وړكا ردي آ وپه همدي سلسله‌كي دښا غلي حنيفـــي
ددغي شعري مجموعي چا پيدل هم دبيرا رزښـــت
درلودونكي دي .
زه‌په‌دا سي حا ل كي چي محترم حنيفي ته ددغـــه
قيمتي ا شردچا پيدومبا ركي وا يم نوموړي تـــه‌د
لازيا ت‌ا دبي پرمختك ا ورشددعا كوم ا ودرا نـــه
لوستونكي يي دشعري مجموعي لوستلوته‌را بولم .

قلم يې كښا ندا وزړه‌يې تپاندغواړم

په دبيره‌مينه

ا ما ن اللـه نصـــرت

۱۳۶۹/۶/۱۱ هـ ش

# دشاعر پیژند لیک

ددی کتاب مصنف ښاغلی طالب العلم سداللـه (حنیفي) صاحب چه دامان اللـه زوی دعبداللـه خان لمسی په کال ۱۳۳۶ ه ش کښې دلوگـر دولایت دبرکی برک دولسوالی دشیخیلو دپوټلـن کلی پهیوه غریبه، ولی دیندار ه‌او موٴمنه‌کورنی کښې سترگی دنیا ته‌پرانستلی .

حنیفي صاحب پهختهستانیزی ، پهستانیزیو کښې پټک خیل اوپه پټک خیلوکښې بیا دشیخیلـو په قبیلهپوری تړلی دی .

سرهلـه دی چه دحنیفي صاحب پلار دا قتصا دلـه پلوهلهستونزوا وکړا وسرهمخا مخ وو ، خولـه دی کبلـه چه دی یوصوفی اودیندا رهسړی ووا ولـهعلما ئو سرهیی خاصه علاقهلرلـه غوښتل یی چهدغـه دزړه تونته مشرزوی ددینی اومذهبی علمزدهکړی تـه وقف کړی ، چهپه همدی آرزویی لـومړی پهحنیفـی صاحب باندی په خپل کورا ودکلی پهجوماټ کښـی دعلم زدهکړهپیل کړه .

حنیفي صاحب لهوړوکوالی څخه خورا ذهیـن او پوهووپه دیرگړندیتوب سرهیی واړه کتابونـه پهخپل کورکښې لهخپل مهربان پلار اودجمـات له ملاصاحب څخه ولوستل .

څرنگه چه دحنیفي صاحب پلارددهزکاوت وازمویه نویی حنیفي صاحب پهکال ۱۳۵۰ ه ش کښې لهخپـل کورا وکلی څخه مسافرکړا وددینی علم دزدهکـړی دپاره‌یی څرخ تهولیږه حنیفي صاحب دفقهـی او

# ځلور ویشتم

مرغوځني كتا بونه پهكوركښي لوستي وو پهمدرسه
كښي يي دصرفو په (مراح الارواح) كتا ب شروع وكړه
چه بيا يي دوخت پهتيريدوسره دهيوا دبيلابيلو
سيموته دعلم پهزدهكړه پسي سفرونه وكړل
او پهځوكلونوكښي يي زيا تره كتا بونهولوستل .
حنيفي صا حب دښوا خلاقوښتن وولههرچا سره په
تيره بيا لهخپلوهمزولوطا لبا نو سرهبهيي ښه
اخلاق او ديا دوني وړسلوك سا تل .
ده له پښتوشعرا وشا عري سرهزيا تهمينهلرله
كلهبهيي چه دچا كوم شعرترسترګوشوپه ډير غوربه
يي هغه شعرلوستا وبيا بهيي دهغه په معنى كښې
دذهن مرغه په ډيره چټكتيا وزغلاوهترڅوچهبهيي
دشعرلبّ او لبا ب اوحبوبا ت را ټول كړل بيا به يي
ترډيري مودي پوري دشعرپهمطلب كښي دخپل فكر
آسونهزغلول ، همدا ووچه ددهدميني اوعلاقي سره
سم دتحصيل پههما غه لاله ها ندهاوستوما نهدوره
كښي دهتههم پهكا ل ۱۳۵۲ ه ش كښي دشعرا لها موشو
دهبهلومړي نعتيهكلامونه ، ځلوريزي پښتولندي
اوغزلونهجوړول .
دحنيفي صا حب لومړي شعردا سي دي :
ما چهوليدهزيبا ديا ربشر : زړهبي يووړلولهما پهيونظر
درنګ سا عت پهزمكهپريوتم بي هوښه
نهمي دم نهمي قدم زخمي ځيګر
دحنيفي صا حب ځني شعرونه دمنا جا ت شكل لري
دي خپل ځا ن حقيربولي ، دقيا مت دلويي او وهم
نا كي ورځي له دهشت نهويريږي ، دخپلوګنا هونو
دبښني سوا ل لوى ښتن (ج) تهدا سي كوي :

الهي تەهغەورغ کړی راآسانـــــــــــــه
چەلەهرسړی ویزا روی موژا وپـــــــــــلاره
خدا یەزما لەگنا هونودرگـــــــــذر شــــــی
دیریم دیریم شرمندده ســـتا ددربـــــا ره
حنیفی صاحب دنوروشا عرانوپه خیردپسرلـــــی
لەتازەاونمناکی هواسرەدیره مینەلری دپسرلـــــی
نری نری باران ، ددنگوغرونوپه پلنواوشگلنــــو
لمنوکښی بخملی کیاگانی ددە په شاعرانەماغزو
دومره اغیزه کوی چه دپسرلی دزړه راښکونکی هوا
اودکائنا تودخالق (ج) دقدرتونوستاینەپـــەدی
شعرکښی داسی کوی :
پسرلی دی بیاتازەمستـــــــــه هـــــــــو ازه
هری خواتە دبلبلـــــو شـــــو رصـــــــدا ده
دشبنم په خیرنـــری باران وریـــــــــــــږی
وچـــــو کانـــــو څنی پورتـــه شنـــــه گیاده
حنیفی صاحب هم دنورومینانوپه خیردخپـــــل
یارلە جوراوجفا څخه دیرپەتنگ راغلی دی بخـت
هم ملگرتیانەورسرەکوی ، دفانی نړی لە ریواجو
نودومره موړشویدی چه نورنونەغواړی چه لەبـــی
وفادنیااودنیاوالوسره سازش وکړی اوخپل زړه
درددا سی څرگندوی :
بخـتچـــه ونگـــړی یـــاری دنیـــا بەڅـەکـــړم
چەونکـــــړی اشنا یـــــی آشنـــا بـــــه څەکـــړ م
حنیفی چه حقیقت تەنظـــــروکــــــــــــــــــــړ م
وا یم پریـــږ ده دا فانـــــی فنابـــه څـــــه کـــړم
حسیفی صاحب چەلە هری خوا مایوس شویـــــدی
هرچا ده ته شاکریده نولە ناکامەدغرونولوری تـه
مخی اودا شعروایی :

خپل ا وبل دوست ا وا شنا نشورا پا ته
دا شنا دلاسه عرض وکړمه چه پا ته
حنيفي فنا دغرو په لوری ورمه
تول وطن خوشي کو مه‌خپل‌اشنا ته

هجر (بيلتون) يودا سي ما يوس کوونکي شي دی چه هرڅوک تری نا ليږي . هجر يودا سي تبا ه کوونکي دښمن دی چه په هيڅا يی پيرزونه ده‌چه‌هوسا ژوند وکړی يار له‌يا ره وروروله‌وروره، زوی له‌پلار ه مورله زويه ا ودوست له‌دوسته جلاکوی نوحنيفي صا حب هم له‌دی دردوونکي مرض نه دا سي نا لښت کوی :

رسوا نه ومه رسوا کړم بيلتا نه
گدا نه ومه گدا کړم بيلتا نه
نه په سرا ومال خبريم نه پوهيږم
ليونی سرپه سحرا کړم بيلتا نه

دحنيفي صا حب دا شعا رو له دی کتا ب څخه‌پرته چه لولی يی نورشعرونه‌هم شته که‌خدا ی کړه چی هغه په يوه قلمي ( نا چا پ شوی ) نسخه‌کښي ليکلی دی چه دوخت سره‌سم به هغه هم‌چا پ شي . دهغه‌کتا ب دسريزی له پا ره‌يی دا سي شعرونه ليکلی دی :

دا کتا ب دغم دفتردی که‌يی گوری
که‌دی مينه‌وی په‌زړه‌کښي ځا ن خبر کړه
لارښوونکي برا بردی که‌يی گوری

دحنيفي صا حب شعرونه‌تول دستا يني ورړدی څکه دده جزبه ډيره‌ژوندی ، حوصله‌ئی ډيره‌زيا ته او علمي قوه‌يی هم ډيروشا عرا نوپه پرتله لوړه‌د ه دده دشعری قوی ترجما نی دده دا شعرکوی .

هرطرف ته‌سترګـــــــی اړو م ړندیږم
ناکـر دومی دزړه غــو ځ کـړل تنابـونـه
اوره‌کړی یم دوخت دفتنـــو ژرنــــــدی
نابېره می نسکورشــــول دکـجا مــــو نــــه

حنیفی صاحب په کال ۱۳۵۵ هـ ش کښې دعسکری
خدمت دپاره جلب شوځرنګه چه دی لاله تحصیـــــل
څخه نه‌ووفارغ شوی نويي وغوښتل چه ددینی علم
امتحان ورکړی ترڅوداساسی قانون سره سمله
عکسری خدمت څخه وبښل شی .

همداووچه دخپل ذکاوت په رڼاکښې دهمغه کال
دعقرب
دمیاشتی په ۱۵ نیټه‌دلوګردولایت دمرافعی پـــه
ریاست کښې دمدرسی امتحان په‌ورکولوپه‌لــــوړو
لمبرووبریالی شواوهمدی کال دلیندی دمیاشتـــی
په لومړی نیټه‌یی دمکلفیت له لوی مدیریــــت
څخه دعسکری دمعافی سندترلاسه کړا وله‌عسکــــری
خدمت څخه معاف شو له هغه رابیرته‌یی د ۱۳۵۶ ـ
هـ ش کال دچنګاښ په میاشت کښې داقتصادی ستونزو
له‌کبله ایران ته سفروکړهلته‌لادی په‌کارهوخــت
ووچه د ۱۳۵۷ هـ ش کال دغوايي دمیاشتی په ۷ نیټه
په‌افغانستان کښې کمونستی کودتا وشوه‌نويي پــه
ایران کښې ژوندتیرول ناروابالـه ، دجهــادی
فریضی داداکولوپه غرض د ۱۳۵۸/۴/۴ هـ ش داسلام
کلاله لاری هیوادته راستون شو ددی کال دمرغومی
دمیاشتی په ۲۰ نیټه یی وادوکړ .
د ۱۳۵۸ کال دشوردمیاشتی له ۱۹ نیټی څخه‌یـــی
چه دلوګر دموء منومسلمانانودیومخیز پاڅـــون
ورځ وه په‌وسلوال جهادلاس پوری کړاوترکـــال

# انه ویشتم

۱۳۶۱ هـ ش پوری یی دبرکی برک دولسوالی دآبجوش دمرکزلـه مجاهدینو سره اوره‌په اوړه په دیـــره میړانه‌نه‌سترې کیدونکی جهاد وکړچی په‌یولړسترو جگړوکی سهیم اودیووا تل مجاهدپه صفت ئی جهـاد وکړ.

په دی ترځ کښی څوځله پیښورته دجهـادی اکمالاتوپه غرض ولاړ چه هلته یی دحـرکت انقلاب اسلامی لـه لوړرتبه مقاماتوسره مشوری اومفاهمـی وکړی .

په دی لړکښی څوځله دفرانسوی ډاکترانولـه تیمونوسره لـه پیښورنه‌دآبجوش ترمرکزپوری لاړچـه دآبجوش په‌مرکزکښی یی دډاکترې کلینک پرانستـه وکړه ترڅو دمجاهدینو لـه‌صحی چاروسره‌څه‌ناڅـه مرستـه وشی .

کله چه دی په کال ۱۳۶۱ کښی پیښورته ولاړ نودحرکت انقلاب اسلامی افغانستان دلوړرتبـه مقاماتوله خوا دجمعیت طلبه حرکت په‌مرکـــزی دفترکښی دامنیې دمرستیال په صفت وټاکل شوچـه بیاپه کال ۱۳۶۲ هـ ش کښی دجمعیت طلبه دامنیـی کمیټې دآمرپه صفت مقررشو .

د ۱۳۶۳ کال دوړی دمیاشتی په ۲۰ نیټه‌یـی کورنی هم دملحدرژیم دمظالمولـه امله پاکستان ته‌مهاجره شوه .

څرنگه‌چه‌حنیفی صاحب په فرهنگی اموراتـو کښی یوڅه‌مهارت درلودنوپه‌کال ۱۳۶۶ هـ ش کښـی دجمعیت طلبه حرکت دصدر محترم مولوی عماالدین په لاس لیک دخپلی قبلی دندی ترڅنگ دجمعیت طلبه

# نه ویشتنه

حرکت دفرهنگي کمیټی دمشا ورتوب دنده همورکړای شوه چه دخپل توان اوپوهی په درلودلوسره یی دحقیقت الاسلام جریدی په لانبا یست اوښه والی کی دیادونی وړکامونه پورته کړل چه لاتراوسه پوری په خپلودواړودندو کښی په ډیره پیاوړتیا هلی ځلی کوی .

څرنګه چه مخکښی هم یادونه وشوه چه حنیفی صاحب دوبیښ ضمیر څښتن دی اودوخت دفتنه ګرودفتنوپه وړاندی یی ډیرزړ دصبراوحوصلی جام ډکیږی نوپه همدی ارتباط په تیروڅوکلونوکښی داعصابود ناروغتیا لهکبله له ستروستروبی ماریوسره مخامخ شوخودډیرو ډاکټری معاینا تو اودواګانوله خوړلووروسته اوس دصحت له پلوهخوراښهشویدی

حنیفی صاحب دښوا خلاقولرونکی ځوان دی له هرچا سره کهپیژنی یی اوکنه په مینوا واخلاص خبری کوی .

تل مدام له ده سره دټولنی غم وی دده ټول سوچونهاجتماعی دی نوله همدی کبلهیی لهشعرونو څخههم اجتماعی خوندونه اخیستل کیږی ، پهتیره بیا دی غواړی چه ددینی مدرسو دطلبه کرامو ترمینځ نظم اوپیوستون رامینځتهشی ترڅودطلبه وودیووالی له برکتهدهیوا دټولی پرګنی سره یو موټی اوخپل آخرنی ارمان تهپه ډیره چټکتیا ورسیږی .

دا وودښاغلی طالب العلم اسدالله حنیفی صاحب په هکله یوڅه معلومات چهپه لند ډول ما دخپلو څیړنوا وچشم دیدپهاساس دمحترمو

EC

| گڼه | سرلیک | مخ |
|---|---|---|
| ٤١ | د میړنو وطنه | ٦٤ |
| ٤٢ | ای د سنګر زلمیه! | ٦٥ |
| ٤٣ | شپیلی د انقلاب کی | ٦٧ |
| ٤٤ | څو به زما قلم ګیلی لیکی | ٦٩ |
| ٤٥ | غلام د ستا | ٧١ |
| ٤٦ | زما ګرانه هیواده! | ٧٢ |
| ٤٧ | یتیم ته | ٧٤ |
| ٤٨ | شکوه او حکایت | ٧٦ |
| ٤٩ | دغسی ښه یم | ٧٩ |
| ٥٠ | د مجاهد غږ | ٨٠ |
| ٥١ | آزادی ته | ٨٢ |
| ٥٢ | د هری ټولو بانډو کی | ٨٥ |
| ٥٣ | سرښکته سرنګون دی | ٨٧ |
| ٥٤ | رانه لاړ | ٨٩ |
| ٥٥ | هغه وعدی دی څه شوی؟ | ٩٠ |
| ٥٦ | څه د ظلم پیلامه وه | ٩١ |
| ٥٧ | راباندی وژړل | ٩٢ |
| ٥٨ | والله چی مینی دی همت د ابدالی راکړی | ٩٣ |
| ٥٩ | مه راڅه اختره | ٩٥ |
| ٦٠ | مسلمانه ولی؟ | ٩٧ |

# مناجات

څما خدایه ! ستا ولورته مي فنا ده
ستا په نوم مي پيلامه او ابتدا ده

هرعمل مي ستا دپاره کړی خاونده
څما نا توان له تا دنیکو تمنا ده

ته را وو ببښي توفيق دښو سبحانه
گني څما فقير دژوند نظام تباه ده

ډيرعاجز يم هرعمل مي دي نيمگړی
دا ستا فضل مي دهرکمبود دوا ده

دوا ړه لاس مي په زا رو درته نيولي
لويه خدايه ! ستا رحمت بی انتها ده

بندگی سره مي مينه په نصيب کړی
دا مي سوال دا مي اميد دا مي دعا ده.

ته رحیم ئی ته‌کریم ئی ته رحمٰن ئی
ستا رحمت ډیر له دنیا او ما فی‌هاده

هغه څه ته‌را ته راکړی ما عاجز ته
چی پوښلی په کی ربه ستا رضا ده

په ما خوار "حنیفی" رحم‌وکړی خدا یه!
نیکی کمه‌په څو چنده می گنا ده

دهجرت جونگړه ۱۳۶۹/۴/۱۳ هـ ، ش

# مناجات

لویه خدایه پدزړه صبرا طمینان را
خوی خصلت دښه سپیڅلی مسلمان را

دشیطان له دسیسو نه مامون نه یم
الهی له لغزیدلو نه امان را

زه عاجزیم دا زمیښت وسه می نشته
ته توفیق دابتلا او امتحان را

ته رحیم ئی ته رحمٰن ئی ته کریم ئی
ته په خپل رحم دنیکو وس او توان را

چه قدم قدم سی تله په نیغه لاروی
ته عمل په سپینه لاره دقرآن را

چی همیش می ژبه ښوری ستا په یادکی
دا سی زړه دا سی حلقوم دا سی لسان را

چی له لاسه می موء من په ازار نشی
دا سی کړه دا سی عمل پدی جهان را

چی تولی دصالحانو کی حساب شم
دا سی عمر دا سی ژوند دا سی ایمان را
چی کاته می دحرامو په لورنوی
الهی دا سی نظر دا سی چشمان را

دګناه په رنځ بیمار یم لویه خدایه!
لدې رنځه د سالم صحت درمان را

پاکه ربه ستا د فضل امید واریم
د خپل رحم په درشل کې خپل احسان را

رحم فضل په ما خوار (حنیفي) وکړې
شناعت د دوا ړو کونو د جانان را

۱۳۶۹/۳/۱۴ هـ ش جهاد کلي

# ستا په راتلو نبی (ص)

ماتی شوی تیاری دجهالت ستا په راتلو نبی (ص)
ړنگی شوی ماڼی دضلالت ستا په راتلو نبی (ص)
ټول بتان نسکورشول مشرکینو ملاوی ماتی شوی
بلی شوی ډیوی دعدالت ستا په راتلو نبی (ص)

ستا په پیدا ښت دانسانیت زمزمی پیل شوی
لورپه لورنړی کی سعادت زمزمی پیل شوی
ته وی ستا جمال وُچی جهان ئی کړ رڼا
سترتحول راغی احدیت زمزمی پیل شوی

زړونه په شکل شول چی دحق پلو ته وخوځی
ړنگه کړی دنیا دبربریت جونگړی وسوځی
پر یږدی دباطل پلودحق حرم ته وه دانگی
ورانی بتخانی کړی دو حشت مخکښان وځپی

نوردوحدانیت دی په راتلو سره روښانه شو
شمعی دحق بلی شوی باطل ترینه ستومانه شو
لوړی شوی شغلی داحدیت دکهکشان پلور
حق په زمزموشورسیده ترخراسانه شو

خلاصی دروازی ستا په راتلو درحمتونو شوی
محوه هرپلو ته ترگمی دوحشتونو شوی
کوردعبدالله نه دی چی نورپه بلیدو شولو
وائی (حنیفی) گرانه سیقل دتوروزړونو شوی

۱۳۶۹/۲/۲ باغوانان پیښور

# څرېکې

دا دی څما له زخمي زړه نه دزخمونو څرېکې
دا له کرم کرم بدن نه ددردونو څرېکې

دا له دردونو کړا وونو نه نشأت کاندي
هرمجا هدته دشهيددپرها رونو څرېکې

دا هره څرېکه دملت دزړه له تله څي
را ولاړيږي تری جوړيږي دغمونو څرېکې

څرېکې دي څرېکي هرسنګرا وهردګرکي څرېکې
دا دموږ منوپرګنوا وولسونو څرېکې

دهربا درده با احساسه بدن څرېکې وهی
دا ده يتيم دزړه دوينو اوټپونو څرېکې

دا دملت دشا زلميو له نيمګړو هيلو
په لمبو سويو اميدونو حسرتونو څرېکې

هره خوا څرېکې ورته ګوره دبيوزله ولس
دا دپيغلو ټوپه اورسويو اميدونو څرېکې

هر يو کلام دی څړيکه دشاعر په زړه
خيژی آسمان ته دخوږ زړه دغزلونو څړيکې

که هرڅو وايمه دردونه دقلم په ژبه
خلاصی به نه کړمه عالمه ! دو ختونو څړيکې

زه ( حنيفی) به گوتی ماتی کړم چی ونه ليکی
دهر بيوزله دبدن دا ندا مونو څړيکې

۱۲/۶/۱۳۶۹ هـ ش
دجمعيت طلبه دفتر

# سره يو موټي يو قوت شي

ورونو ارا ټول په صداقت شي چې تسکين مې وشي
سره يو موټي يو قوت شي چې تسکين مې وشي

را سره نه ښائي چې تا سوته خطاب کومه
خورب دپاره رااوچت شي چې تسکين مې وشي

دا دملت دهروګړي دضمير آواز دی
تيرله دا خپل خيالي قدرت شي چې تسکين مې وشي

ديتيما نوګړيکي واوري څه په کوکوزاړي
په حال خبر دخپل ملت شي چه تسکين مې وشي

موء من ولس موپه سروويښوکي رنګين شوخلکه
ورته په صدق په خدمت شي چې تسکين مې وشي

آخربه آه دمظلومانونه لمبه لمبه شو
له داسې حال نه په نفرت شي چې تسکين مې وشي

دشهيدوويني ځوښيدلي دي موجونه وهي
ددا سې وينو په عزت شي چې تسکين مې وشي

ولی ؟ ویده شوی ولی وینی درنه‌هیری شولـــی ؟
راځی راپورته په همت‌شی چی تسکین می وشـــی

دابه ترڅوپه بیلوبیلولاروتلـــه وی زمـــونـږ
په یوه لارپه حـــرکـــت‌شی چی تسکین می وشـــی

دخدای (ج) رسی سره راټینګه کړی په‌ګـــډه‌وروڼو
له تفرق نه په نفرت‌شی چی تسکین می وشـــی

که مونږهمدا سی‌کوسی خپل هدفته درومـــو
بیا فلسطین نه په عبرت‌شی چی تسکین می وشـــی

د(حنیفی) ترخی خبری ښی په مینـــــه‌وا وری
ورته غوږغوږښه په دقت‌شی چی تسکین می وشـــی

سکب‌خوږ پیښور

۱۳۶۹/۷/۱۸هـ ش

# راځئ چه سره یو شو

راځئ چې یو له بله ورک کړو دوروري لاسونه
له بیخه پریکړو دا ناولي غرضي لاسونه
دفتنګرو دا فتني اودسیسې کړو شنډي
سره یو موټی شونا بودکړوا لحادي لاسونه

که سره یوشو بیا به ستونزی کړا وونه وی
بیا به په مونږ بانډي له هري خوا بریدونه نه وی
بیا به طاغوت راته سجدې دعظمتونو کوی
بیا به ښکیلاک بیا به زبیښاک او یرغلونه وی

بیا به سرلوړی په جهان کې یو غلامان به نه یو
بیا به آزاد بیا به خپلواک یوبندیوان به نه یو
راځئ چې ختمې کړو منګولي دالله په رسی
بیا به سوکاله یو همیش ستړی ستومان به نه یو

که په اسلام سره راټول شو بدبختي به نه وی
دا غریبي دا بې خوندي دا بدرنګي به نه وی
امنوامان به وی وروري به وی خوندونه به وی
نه به یرغل وی نه تاړاک دابې وسي به نه وی

د(حنیفي) دزړه تپونه به دوا دواشی
دا تورتمونه داتیاري به سپین رڼا رڼا شی
دالحا دېت به رانسکورشي کرملین کې ورونو!
دهرموء من دچمن ګل به په سپړا سپړا شی.

۱۳۶۹/۷/۱۴ هـ ش باغوانان پیښور

# راته را

خاونده ادزره څرېکی تودځيگرکړه راته را
ښه سوزا وښه گدا ز پټ په صدرکړه راته را

چې ماتی پری تیاری دجهالت او دوحشت شی
سینه کی داسی نورلکه دلمرکړه راته را

چې مینه می په زړه کی په موجونو ببل وکړی
خالقه ! ستا دمینی سمندرکړه راته را

چې تنده کړم پری ماته دجزا په لوی ډگرکی
په ورځ درستاخیز (کی) آب کوثرکړه راته را

چې زړه می په تپاندوی او په سرولمبوور یتیږی
ای ربه ! داسی عشق دپیغمبر (ص) کړه راته را

چې کړمه تاړاکونه داسلام په دښمنانو
غیرت او شجاعت دخپل حیدرکړه راته را

چې عمرمې تیریـــږې بندګی کې ستا خـــا ونـده !
ټول عمرپـه دا رنګ شا م ا وسحرکـــړه را تــــــه را

تما م عمرمې تیرپه ګنا هونوکـــــې شـــوربـــه !
درحم پـه څپـــو دمـــرګ سفـــر کـــړه را تـــه را

بیـــږې مې ډوبه شوې دغفلـــت پـه سمنـــدرکـــې
خا ونـده دنجا ت سا حل ګودرکړه را تـــــــه را

چې لوندد (حنیفی) ګریوا ن پـه ا وښکووې سبحـــا نـه
چې ا وښکې ترینه ځې دا سې بصرکـــــــړه را تـــه را

جها دکلی دجمعیت طلبه دفتر

۱۳۶۹/۷/۲۱

# راپاڅه هله زړښه

خما دزره ارامه خندیدو سره راځه
نسیم دآزادی شه میکدو سره راځه

راویښ شه راخوځیږه راروان شه ځما یاره
راپاڅه هله ژرشه له پیالو سره راځه

غمونه رانه واخله خوشالی کړه راپه‌برخه
ټول خم درسره راوړه له نشو سره راځه

دهجر په دنیاکی می مورال له لاسه ورکړ
راځه دزړکی سره حوصلو سره راځه

زخمی په‌اندرون یم خولی نه‌وینه غورځوم
ځما درنځ طبیبه درملو سره راځه

ترڅو به یم په کړیکوستا په دراوپه‌دیارکی
تحفه دوصل راکړه دیدنو سره راځه

جهان رنا رنا که دنیا رو پرده کړه څیری
بلبیږه څراغان شه له ډیوو سره راځه

په تن کړم کړم یم ستا دجبر په نمړی کی
دخدای دپاره راشه کرشمو سره راځه

راځه چی ځوسنګرته له اسلامه قربانی شو
مرچلو دجهادته له حملو سره راځه

چی سوربت رانسکور کړو دالحاد مورورته بوره
همدم د (حنیفی) شه زلزلو سره راځه

زمونږ دشهیدوینی سره ګلونه تهو کوه
بهار دخپلوا کی شه تهو کیدو سره راځه

۱۳۶۹/۷/۱۶ دهجرت جونګړه پیښور

# له نظره ځینې

وینی می څاڅی دزخمی زړه له پرهره ځنــــــی
اوس به ناسورشی ددی دهرله هنره ځنــــــی

پرهرپرهر په اندرون یم‌له ناخوالوخلکــــــه
دیرناکراریم له زخمونو دخگره ځنــــــی

له چافریاد وکړم دچاله لاسه کوگی وکــــــړم
شپه ورځ څوریږم له جفاوودبشره ځنــــــی

داسی څوک نشته چی لاس راکاندی دخدای(٤) دپــــاره
په جیغوسریم له کردو دلراوره ځنــــــی

هرچاد امونه راته ایښی چی مـی گیرکړی په کــــی
پردی لاپریږدی په زړه مورشوم له دلبره ځنــــــی

ماداخپل حال اوخپل روز گارهره گــــړی ژړه وی
سترۍ ستو مانه شوم دهرسړی له دره ځنــــــی

زه ( حنیفــی ) پرینښته نه یمه خاکی‌بنده یــــم
ولــی ؟ پښ‌شــوی بم دخلکو له نظره ځنــــــی

سکپ باغبانان پیښــور ۱۱/ ۸ /۱۳۶۹ هـ ش

# وګکه چې خمار شي

د توحید د میو جام وګکه خومار شه
د غفلت له خوبه وخوځه بیدار شه

وګکه وګکه دغه مې نشه نشه شه
له هغه پس د عساقو دکتار شه

چې له سیلمي تول د حق په نور روښان شي
د توحید دګلو کرکوه مالیار شه

چې دې یون وي د نیکانو په کاروان کې
نیک خصلت شه له کل بدونه ویزار شه

چې په حشر کې د عرش تر سیوري لاس دې
ئې ولاړ نوخاص بنده د کردیګار شه

چې نصیب دې شفاعت دخپل حبیب شي
په قدم ئې قدم کیرده ترینه زار شه

حینفي چې ماته وائي ځان دې هېرد ي
د عمر (ص) د عدالت عالم بردار شه

۲۱-۸ – ۱۳۶۹ هـ ش
سکپ باغبانان
پیښور

# رالټوم

که نن وی که سبا وی ټول جهان را لټوم
دزړه په سوز او څریکو جهانیان رالټوم

اواز دانقلاب می زمزمه شه ترکشمیره
په دنگو دنگو غروکی کشمیریان رالټوم

بوتان به بیانسکور شی د ډیلی په بتخانوکی
په الله اکبر به غزنویان را لټوم

طاغوت به په گونډوټو لهنړی کی کوټ پهکوټ شی
شپیلی دانقلاب یم مظلومان را لټوم

خوځښت دی پیل شوی په هرلور دمسلمانو
دشعر په ځپوکی مسلمان را لټوم

ویښ شوی مظلومان دی دالحادپه کور ورخیږی
په کلیوپسې گرځمه ځوانان را لټوم

دیوال دبرلن مات کړا رادی د بیوزلانو
اوس پوری له آمونه بیوز لان را لټوم

چې ماتې زولنې کړی ځان ازاد کړی غلامی نه
الهام ورته بښمه آذر یان را لټوم

په تورو تورو شپوکې چې ډیوی په بلیدوکړی
ختیځ نه ترلویدیځه موء منان رالټوم

چې پورته جنازه دځمکې سرنه دښکیلاک شی
په داسې پاڅېدو به (حنیفیان)را لټوم

۱۳۶۹/۸/۴ هـ ش سکپ باغبانان

پېښور

# غاړه غړې راشه

مونږه چې سلګې کړې جهانیان په سلګو سرشوله
لوی خلک خو پریږده ماشومان په سلګو سرشوله

چیرته چې ځوانان کړم کړم خاوروته لاړ له
هلته دلاله سره سره ګلان په سلګو سر شوله

کوم خوا چې دورارې دژړاکوکې ناري خیږې
شاوخواترې سخت زړې انسانان په سلګو سرشوله

هرکورنه چې ورو ورو دزخمیانو زګروی پورته شول
بیا دهغه کور پرینګان په سلګو سرشوله

خنګه چې دپیغلو اوځوانانو هیلو اور واخیست
داسې ډیوې مړې شوې پتنګان په سلګو سرشوله

کور په کور چې کوندې په ژړا ژړا په کوکو دې
دغه راز شې پاس په سرمرغان په سلګو سرشوله

کوم بیوغم به وژاړم دنیا غموپه‌مخه کړه
ما غوندی بی شمیره شاعران په سلگوسرشوله

چاچی دیتیم په کړیکو کړیکو ژړاواوریده
سترې شول له کریکو بیاستوما ن په سلگوسرشوله

غاړه غړی راشه ( حنیفی ) چی سره کوکی‌کړو
زمونږ په حال ځنگلو کیی حیوانا ن په‌سلگوسرشوله

۱۳۶۹/۸/۲۱ هـ ش دهجرت
جونگړه پښور

# لوبې کوي

يوځوتنه زبيښونکي په انسان لوبې کوي
طاغوت دشرق اوغرب په ګرد جهان لوبې کوي

زبيښناک چې زبيښي وينه شپه او ورځ دغريبانو
په وينه دبې وسه آن په آن لوبې کوي

مظلومې پرګنې چې استعمار په ښکيل کې ساتي
ددغوپر ګنو په مال اوځان لوبې کوي

عزت ورځنې لوټي په آبروئې کړي بريدونه
په ننګ او په ناموسئې هرزمان لوبې کوي

ترڅو به داسې کېږي چې بيو زله به محکوم وي
په پټ او په حريت يې ظالمان لوبې کوي

بهار دمظلومانو خو هميش خزان وي
ترڅو مه بې په کور سپيره خزان لوبې کوي

راځې چې سره يوشو يوآواز او يوقوت شو
ترڅو به موپه ژوند داسره ليوان لوبې کوي

ژړېږه ( حنيفي ) دخپل ولس په حال ژړېږه
په حق اوسرنوشت ئې غداران لوبې کوي

۱۳ - ۸ - ۱۳۶۹ هـ ش
دهجرت جونګړه پيښور

# متانت

زه خو خپلواک یم غلامی په ځان منلی نشم
دا دنګه هسکه شمله را کوزولی نشم

که می سرپری اوتن می بندپه بند قلم قلم شی
دبردګی زنځیر په غاړه ګرزولی نشم

که ظواغیت راته یومو بی شی خو مړبه می کړی
مرګ می قبول دی دزلف ژوندتیرولی نشم

دغزنوی ، دابدالی ، دلوی میرویس په قدم
اخلم قدم دبل په لیکه باندی نللی نسم

که می په تن لمبی بلیږی او سوځیرم په کی
له خپل مسیرنه بل پلونه ستنیدلی نشم

که دمنصور په څیر می پورته کړی په دار ملګرو
که دبلال (رض) په شانمی وریت کړی په انګار ملګرو

او به می نه باسی دحق او حقیقت له کسر بی
دحنزله (رض) په رنګ به ځان کړم تری‌نه ځار ملګرو

لکه خبیب (رض) له قتلګاه نه به رابیرته نشم
کړم به په وینو دخپل تن جامی سینګار ملګرو

زه (حنیفی) به خپل سنګر په وینو کرم ساتم
بیا به تازه دکربلا کړمه یادګار ملګرو

زه قربانی ته په ډګر لکه حمزه (رض) ورځمه
دځان ایثار ته همېشه یمه تیار ملګرو

سکپ باغبانان پیښور
۱۳ - ۸ - ۱۳۶۹ هـ ش



# حنیفی ته به د هیلو جام چپه کړی

تباهی ته ورخوځیږی جهان و رو ورو
دردوی می اختراع داسان و رو ورو

ټول جهان ئی مالامال که له اټوم نه
یوه ورځ به داجهان کړی نیران و رووروو

دا ټوم مقابلی دی سره کیږی
وحشتونو ته بشردی روان و رو ورو

دی جونګړو نه به جوړی هدیری شی
دبهارځای ته را درومی خزان و رو ورو

که داحال وی ټول بشر به سره لمبه کړی
طواغیت به پری سره خپله سینه کړی

* * *

لړزاویبش شی له خوبونوځ به ولیو
دهمت مټی رانغاړی کړیدلیو

ښوبه زبېښی رانه‌وینی وینه ښکونکی
ای ځما دعقیدی ورونو سپیڅلو

چی له سیلمی نه‌زبیښاک اوښکیلاک مات شی
داسی تړه سره‌وکړی دردیدلیو

چی نابودئی ورته نن لا اتوم بم کړو
داسلام په دین مینوځوریدلیو

که‌نه‌هرچاته به‌خپل کورهدیره کړی
حنیفی ته‌به دهیلوجام چپه کړی

۱۳۶۹/۶/۶ هـ ش جمعیت طلبه حرکت

# ورانه شوه دنیا د مینی

پریږده چما زړکیه‌نوردمینی لمن خوشي کړه
مینه زیاتی نشته دادیا را وچمن خوشی کړه

ورانه شوه دنیا دمینی تولـه گندوالـه شوله
لاړشه‌گوه‌نشین شه نفرتونووطن خوشی کړه

مینه خوهغه‌وه‌چی دنیا پری رانسکوره شوه
و سوله لمبه‌شوله دمینی خونه خپوره شوه
واوره چما دله جای ئی پریښودنفر تونوته
مینه چی په لیږد شوه داخلاص‌ناوی سرتوره شوه

ای د(حنیفی) زړه‌گوتی څومره خوش‌باوره‌ئی
څومره لیونی ئی څومره خوښ لدی هنره ئی
سترگی دی رونی کړه چی کوهی ته ورلاهو نشی
مه‌درومه‌گرنگ ته‌ورگډ شوی بی گودره ئی

۲۱/ ۵/ ۲۳۶۹ هـ ش‌باغوانان

# له اروپا څخه

زړه‌می په چاودون دی خدای کوخلکوله دنیا څخه
نه‌یم لیونی خولیونی به شم لـــــه داڅخـــی

گورکهول می خپل دی واک اختیاریی وی لما ســره
ولی ؟ پریکړی کیږی ورونوپسی شالماڅخنـــــې

ماخودخپل تن په‌وینو تول وطـن خـروب کړلـو
ځی دوینوپوی له دریابودآریاناڅخــــــــی

گوټ په گوټ وطن کی یتیمان راتـــه ژړاکـــوی
لیک غمخورئی نشته چی کرارئی کړی ژړاڅخـــې

بورووراروکوندونه‌می دک کلی کورونـــه شـول
چائی اوښکی وچې کړی فریادوکړم لـه چـــاڅخې ؟

وران می‌جوما تونه‌مدرسی اودنگ کورونه شـــول
اوس راته تول واک تراشلی کیږی بلـی خواڅخـــې

ځومره اتلان می پدی لارکی قربانی شـــولـــه
څنکمه‌ئی زغمو؟ داووتول له ظاهر شاڅخــــې

دامی شهامت وچی سره پوځ سرراته ښکتــــه کـــه
زړه دکهون خوړین شوله بچو داحمـــدشاڅخـــې

لړد (حنیفی) په‌دامهجورولس زړه سوانـــدی شی
ولی ؟ بیا رادرومی‌دامستان له‌اروپاڅخـــــــې

۱/ ۵/ ۱۳۶۹ هـ ش‌ـ اغونانان

# برزخي شيبي

مه كوى چى تولەدنيا ورانه شي
جورى زلزلى شي انسانى مينەمحكومەشي
وسوزى لمبەشي دبشردعاطفى نرى
سرەدا ورتبى شي دنمر ود په لمبو زمكه بيا
پورتەشي لوخرى داسمان پلوته لورى شي
هيلى لولپەشي ارزوگانى پەكى وسوزى
پيل كرى لەسره دريابو نەليونىجپى
هلتمبه سيراب شي دانسان وينوته ترى زره
هلته بەارام شي چى بشرله سيلمى ختم شي
زوبەئى دمەشي چى مظلو مى وينى وختى
مەكوى چى خونى موخرابى شي
مەكوى چى زرونەبرين شي لا
مەكوى چى نورلاهوبى رحمه شي
پيل شي برزخي شيبى
هرخه رادبره شي
سترى شي ستومانه شي
دغه انسانى نرى
مەكوى چى راشي الهى نظام

هرخەخپل خبتن تەورترغاړه شي
هرچا ته دخپلو كړوهنداره ورتەووسپارى
هلتەبەدحق اودباطل وزن تەووكورى
بيابه (حنيفى) تەدطاغوت پلوسربكته كړى

١٣٦٩/۶/١٧ ه ش دهجرت جونگره

# جهاد نه دی قربان شم

دا ستا دتوری شرنګ وچی دکفر کورورانیږی
جهاد نه دی قربان شم دکمون جرړی غوځیږی

دا ته وی چی دجبر کوردی وران که په نړی کی
دیوال دبرلین مات شو لیتوانیا هم آزادیږی

پرون خلق اوپرچم ون ئی نوم حزب وطن شو
خیری دی کله سری شی ګلبدین رنګ شی بدلیږی

ازبک دی که آذردی که په نسل کشمیری دی
الهام له تا نه اخلی ولسونه دی خوځیږی

دا ستاله عظمتونونه جهان لوګی لوګی شه
له متودی څاریږم دوحشت ځنځیر ماتیږی

الحاددی په نړی کی په ګونډوا وسرنګون که
آسیا اوا روپا کی دکمون تغر ټولیږی

حنیفی ستاله همتنه نظر وچ اوسپیلنی شه
سوربت دی رانسکورکه ورځ په ورځ ئی مختوریږی

۱۰/۴/ ۱۳۶۹ هـ ش باغوانان

# څوک یو شانې څوک بل شان

څوک په وینوکې لت پت دي څوک خوشحاله دي میلې کړي
دچا کور په کونډو ډک دی څوک بې درده دي نشې کړي
څوک تو دي ساتي مرچلي له اسلامه قربانيږي
څوک پارکونو د لندن کې دسرو ګلو تماشې کړي

څوک د پلار قبر ته ناست دي په دردناک اواز ژړيږي
څوک بیاخاندي په خندا دي ورځ کې یو کیلوغو تیږي
دچابوري مور ته کوره د خپل زوی په غم ماتم کړي
دچا بنه کار برابر دي په مزو یې وخت تیریږي

دچا خونې شولې ورانې کنډوالې ئې شول کورونه
چا په وینو د پردي زوی ودان کړي یلډ نګونه
چا ته غبرګې جنازې لمجهادي ډګرنه راغلې
څوک خبر په جهاد نه دي کوي خپل تجارتونه

چا خروب کړله په وینو دوطن دری ډاګونه
چابیا خرخ کړو مونږ په نوروشورا خلاص پردي لاسونه
چا په صدق رهبري کړو په ایمان دي برکتونه
چا راوړي ګران وطن ته داغیار و مسلکونه

رب دپاره خلکو واوري څه فتنې شوي راته جوړې
آینده مو ډیر و خیم دی دسیسې شوي راته جوړې
حنیفي مهتې رانغاړه دجهاد ډکرته دانګه
دخوبونو وخت تیر شوی خطري شوي راته جوړي

۲۹/۳/۱۳۶۹ هـ ش جهادکلی

# دکشمیر د غرونو بازه!

دکشمیر دغرونو بازه! چې دښمن ته سرټیټ نکړې
ای دننک او پت اوازه! چې دښمن ته سرټیټ نکړې
سرو لمبوته ورلاهو شه! سنگرونه لاتلوده کړه
کشمیری نهضت پیشتازه! چې دښمن ته سرټیټ نکړی

آزادی دچمن گل شه! دکشمیرپه دننگو غروکې
دخپل واک وطن بلبل شه! دکشمیر په دننگو غروکې
ددښمن په سررا پریوزه! آسمانی تندرپه رنگ کې
دجها ددکاروان مل شه! دکشمیرپه دننگو غروکې

افغانی جهادنه اخله الهامونه ورانډی تله کړه
په تودووینوتودیړی سنگرونه ورانډی تله کړه
ددیلی دشیاطینوورته ماتې ککړی کړه
کړه دفتحې ترپړاوه جهادونه ورانډی تله کړه

دا یمان په زورسمبال ئی چی همت دی کاسته نشی
ددښمن توری ته‌دا ل ئی چی همت دی کاسته نشـــی
تر روستی لمحی دژونده له دښمن سره جنګیـــبږ ه
ته‌عسکر دذا لجلال ئی چی همت دی کاسته نشـــــی

ته دخپل حق طلبګار ئی په‌جرئت دی برکـت شـــه !
دا سلام دباغ ما لیا رئی په جرئت دی برکت شـــه !
خپل هدف ته په‌رسیږی که‌دخدای (ج) په‌لاره‌نیغ تلی
حنیفی دزړه قرا رئی په‌جرئت دی بر :کت شـــه !

دکشمیر دغرونوبا ز ه ۱

# مجاهد ته

ځما پتمن زلمیه ! تا ته سلام کوم
ځما هودمن زلمیه ! تا ته سلام کوم
ای ساتنمن زلمیه ! تا ته سلام کوم

تا له خوبونوویښ کړه
دا خوبولی خلک
تا په پښو ودرول
دا کړیدلی خلک

ته دمظلوم حمائی تا ته سلام کوم
دتوروشپورڼائی تا ته سلام کوم
ځما دچمن ښکلائی تا ته سلام کوم

تا مظلومان وژغورل
دسره ښامار لستونی
تا ټول جهان که خوندی
دا ستعمار له ستونی

ای باوفا اتله ! تا ته سلام کوم
دنن سبا اتله ! تا ته سلام کوم
ټولی دنیا اتله ! تا ته سلام کوم

تا حماسی کړی جوړی
دځمکی سربا ندی
غلیم دی وټکاوو
په هر دګربا ندی

دیتیما نودا دئـــی　　　تا ته ســـلام کـــوم
دبی وزلانودا دئـــی　　　تا ته سلام کـــوم
دغریبا نو دا دئـــی　　　تا ته سلام کـــوم
تا دکمون دا پـــــزم
جـــرړي را ویستلـــــی
دا سری وحشی لـــبنکـــری
دی گوډی ما تی کړلـــی

جها ن دی وخوځــــا وه　　　تا ته ســـلام کـــوم
دشمن دی وشرمـــا وه　　　تـــا تهســـلام کـــوم
وطن دی ولـــړزا و ه　　　تا ته ســـلام کـــوم
ستا بـه صفت کـــو مـــه
کهپـــدی وتوا نیـــــږم
دحنیفی جا نـــا نـــه
ستا په کړا وکـــړیـــرم

۱۳۶۹/۳/۲۰ هـ ش　　　چرا ت دجـمعیت طلبـه دفـتـر

# ما ته خبری د پرون مه کوه

لکه‌دګل پا نهه رژیـــږم خـــزا نونـــو ســـــره
عمرتیریږی لـه ربړونـــو کـــړا وونـــو ســـره

دا خه سیلی ا وتوپا نونه دی چی وړی پـــه مـــخ
لاس ا وګریوا ن یمه دوخت لـه ښکیلاکونـــوســـره

ما ته کیســی دسوکا لـی ا وسبا وڼ مـــه‌کـــو ه
نن را ته‌ګوره یا دښتونـــه دپـــرو ن مـــه‌کـــوه
وینه‌می زبیښی دزبیښا ک په لاس کیـــوتـــی یمـــه
لـه قصا با نونه‌می هیلـه دژوندون مـــه کـــو ه

۱۳۶۹/۶/۱۶ هـ ش
با غوا نا ن

# یم خوځیدلی

یم خوځیدلی ما توم داستعمار ککری
له سره کمون نه‌زیږیدلی دمکار ککری
دا دپریبونوا ودوکوګا له بی وسو زوم
کړم به سرخمه دزبیبنونکو اوغدار ککری

راته سربکته سرنکون شول یر غلګر پوځونه
پدتیبنته لاړله وحشی اوځنا ورپو ځونه
توله نړی کی شوی نسکوری دکمون ږجلی
چی حنیفیا نوپه‌ګوندو کړه سره سوږرپوځونه

۱۳۶۹/۶/۱۶ هـ ش باغوان

# پاخون

دا دوحشت تیا ري به تیری شي رڼا به زا شي
دآ زا دي ها ربي ترغا ږوی لیلی به را شي

دا به دغروپه سروبیا شوغلی دلمرخپري شي
بیا بهپرا نیزی گلاب شونډی په خندا بهرا شي

دا شترا ک زنځیرتهکوره چي ټوټي ټوټي شي
دا زا دي نا وي که خدا ی ج کړل نن سبا به را شي

دغه آرزوبهدا سلام دننگیالو پوره شي
چي شنه ډولی دا زا دي په آریا نا به را شي

دا دشهیدوینی دي نن سبا بهرا وړي میوي
گوری سپرلی چي په ټا ټوبي دبا با به را شي

دا را ته زیری دشهیدوینی په خوا را کوی
دخپل وا کي طوطي ا لوتي په دي خوا به را شي

غا ښ بهشي ما ت دغا صبا نودا سلام په توره
دخدا ی ج په ا مرله خندا ډکه دنیا به را شي

تەدهمت پە پت سینگا رئی سترگی ووغـــــــروە
دا یما ن تورە درسرە ستا مدعا بە را شـــــــی

تا کړە را ویښە دهرچا دآزا دی مفکـــــــــو رە
ستا پە پا څون پسی پا څون لە هری خوا بە را شـــی

ورکوەوینەدا سلام دحا کمیت پەخـــــا طـــــر
خزا ن وهلی گل اوبەکـــړە پـــە سپړا بـــە را شـــی

حنیفی ورکړە دتن وینە توپا نونە جـــو ړکـــړە
تا ریخ دننگ پەمی خما رکړە پـە ښکلابە را شـــی

دغە غزل چی تا سوولوست څما دهغی ورکی قلمـــی
نسخی نەووچی دا یثا رمجلی لەلومـــړی
گنړی نەما ترلاسە کړ: ( حنیفـــی )

# د تکبیر جگي ناري شوي

هندوکش په‌گړ نګوټي دتکبیر جګي ناري شوي
دا فغا ن ولس له‌توري هرموړ من لوړي سملي شوي

دبا طل په مقابل کي ا فغا نا ن وتي دګرته
دآسیا دزړه په تل کي دجها دبلي ډیوي شوي

دطا غوت خوله‌کړه‌ورما ته‌د ( مروبس) نیکه‌لمسیا نو
سره‌ښکیلاک څمڅبرئي غوڅ کړملحدښنو منه‌ي پري شوي

له‌آسیا ښا روپا ته‌خوځښتونه چي وړده شول
دا جها دځما دملت ؤچي سړي وښي نودي شوي

دا همت عظم متین دي دا فغا ن په پرکنوکي
چي دروس وحشي لښکري ورته هیڅ ي په‌سجدي شوي

چي دبوا ل د( برلین) ما ت شودا ځما مجا هد ت و
دا لحا دپه شیا طینوله هرلوري نه‌حملي شوي

دا زمونږ ا سلامي یو ن دي خپل هدف ته‌به‌رسیږ
ا ستعما ربه‌کوربه خیژي تري نه‌جوړي قا فلي شوي

دښا سترګه را خیژي توري شپي به‌روڼ سحرشي
دا فغا ن له‌دښکو غروڅي را څرکند ي پلوشي شوي

سوربښا ما ردي پورځولي (ا حمدشا ه ) دکورزمریا نو
(حنیفي) دا قا فلي درومي هدف ته‌ورنیږدي شوي
۱۳۶۸/۱۱/۲۷ هـ ش با غو نا ن

# دښمن وتکوه

وطنه‌ئول نیرن نیران شه ښمن وتکـــوه
ئول سنگرونه‌ئول سوفان شه‌دښمن وتکـــوه

داچنبی مری کره‌غـوځــه دهمت په‌تـوره
تول ورسه‌تندردا سمان سه ښمن وتکـــوه

دملحدیومیندی بوری کــره وطنه محمــا
تول ورته‌قبرکورستان شه‌دښمن ونکـــوه

دکمونیزم کورخراب کره همـت مرچلـــه
دسلمان ددرددرمان شه‌دښمن وتکـــوه

تاکرلی مانی سری لښکری غزنوی‌تا تهوبـــی
لاورنه‌جورگرنگسنان شه‌دښمن وتکـــوه

سینه‌دی رنک شوه‌دمظلوموبرکـــو په‌وینـو
ورته‌گلشن اوگلستان شه‌دښمن ونکـــوه

توره‌تیاره کره دسبا په پلوشوبـدلــه
دپسرلی په‌خیرخندان شه‌دښمن وتکـــوه

دازادی دیوه کره‌بله دنگو غروپه سرو
بیا (حنیفی) نه‌چیراغان شه دښمن وتکـــوه

۷/۱۰/ ۱۳۶۸ هـ ش باغوانان

# د زړه خواله

چې ونه توکی گلونه بها رخه کړم
چې نکورنکړی زخمونه نگا رخه کړم

چې خزان ځپلی زړونه تازه نکړی
په ړندوسترگو لیده دگلزا رخه کړم

چې وطن مې راته گل او گلزا رنکړی
دا د دځان په غم کې سترې ما لیا رخه کړم

چې دکوندوبو روا وښکې وچې نکړی
دا لیدرا ودا نیمگړی ، غمحوا رخه کړم

چې داستر اسلامی یون رهبری نکړی
دقدرت په گدی مستا وخوما رخه کړم

چې ملی وحدت پوښلی په کې نوی
په گوندونو ویشل شوی دیا رخه کړم

په هزا رځله راغومه پسرلیه
تیریده دې را نه خیر مه کنا رخه کړم

را شه را شه په رښتیا غیرې ته را شه
بیا را تله دې بې ثمره دوبا ره خه کړ م

(حنیفی) چې نیمه خوا قبر ته لاړشی
بیا یوا زی دا وطن لاله زا رخه کړ م

۱/۵/۱۴ ۱۳۶۸ هـ ش
بلغاریا

با غوا نا ن

# کاروبار د عشق

ما چې ولیده هغه ښا مـــا ر دعشــــــق
په غضـب ئې پما وکـــړ وا ر دعشــــق

سرترپا یه ئی ایره کـــړمـــه په زهــر و
هسې پریـــو تم تـنها ببما ر دعشـــــق

په دارود طبیبا نو نــه رغیـــــــــړم
معلـو میږی چې دغه آثا ر دعشــــق

سرتور سـر چیری کـریوا ن ولاړمــه غـروتـه
دا سی کـړمه وا رختـا پــر ها ر دعشــــق

شـو م تـنها لـه کورا وکلـی ځنـــــی ولا ړم
خـدا یـه ! څــو مـره سخـت دی کا راوبار دعشق

دا شنا په درکی خوا ر ( حنیفی) پــروت یـــم
غمـا ز ا نـو تیا رکـړی دا ر دعشــــق

---

ستا له دربــا ره ۱۳۵۲ هـ ش قر با غ

---

# جهاد ونه کوم

په‌ا سلامی سپیڅلی لارکی جها دونه‌کـــــو م
دا سلامی دین په دښمن به‌تا ړاکونـــه‌کـــوم

جزبې مې گوره‌چې څوا نیږی ورځ له‌بلې ورځې
څکه‌حملې پرله پسې په‌ملحدینوکـــو م

دنړیوا ل کمون زیبښی به‌مې همت کړی غوڅـی
په‌صدا قت یم خوڅیدلی غورځنگونـــه‌کـــو م

دآ زا دی په‌لوری ځم .وړا ندې قدم په قـدم
دمقدس هدف په‌لوری منزلونــــه کــــوم

دا ستعما رځنځیربه ما ت کړم دمولاپه‌مرستـه
دسره ښکیلاک په‌تا لی ځهوبه‌بریدونـه‌کـو م

هغه مې ویښ کړل چې ویده‌ووپه‌خوبونوباندی
لوی رهنما شوم دبښونکی رب شکرونه‌کـــو م

توری تیا رې مې کړلی ما تی سپین سباپه‌خا طر
دسباوون په‌لوری ځم په دین جنگونــه کوم

ا فغا نستا ن کی مې کوډی دکفروړا نه‌کړلــه
آمونه‌پوری په‌ا لحا دبه تا ړاکونه‌کـــو م

چې یرغلگرې سرې لښکرې ټې بې پته‌کړلـی
زه (حنیفی) به‌دهغه‌څوا ک صفتونـه‌کـــو م

۱۳۶۸/۱۱/۲۳ هـ ش با غوا نا ن

# چې تسکین مې وشي

را ته دلبر را ته جانان شه ا چې تسکین مې وشي
را ته په خوب کې نما بان شه ا چې تسکین مې وشي

در پسې وېنې تویه وم له خولې به لېو لېو
را ته طبیب را ته درمان شه ا چې تسکین مې وشي

کړم کړم یم گران ستا جدائي دلاسه
کړه برما رحم مهربان شه چې تسکین مې وشي

مدام کړیږمه بېلتون مې کړوی دلبر
بوځل مونږ کره مهمان شه ا چې تسکین مې وشي

سکون مې نشته لالها نده ورځې شپې تیروم
را ته سکون او اطمینان شه ا چې تسکین مې وشي

لکه یعقوب (ع) در پسې ړوند به شم په غبرگو سترگو
په تصور کې را عیان شه ا چې تسکین مې وشي

ته مې محبوب ته مې جانان ته مې سکون شه د روح
ته مې به حشرنگهبان شه ا چې تسکین مې وشي

ستا د فراق نرموغرموکې جل وهلې پروت یم
له رحمتونو ډک باران شه ا چې تسکین مې وشي

مجنون خونه‌یم خومجنون صفت له ربـــه غـــوا م
جوړه لبلی را نه هر ن شه اِ چی تسکین می وشـــی

زه دغفلت به دنبا گـــی خوبـــو وړی بمــــــه
ته‌می شغبع په لوی مبدا ن شه اِچی تسکبن می وشی

دگنا هونوسمندرمی بېړی ډوبـــه کـــــړلـــه
ته‌ئی ملاح ا وجا لـــوا ن شه اِ جی تسکین می وشـــی

دسحربا ده هله شا بس رو نبړه زړشـــــــــه
ځما له خوا بیغا م رسا ن شه اِ حی تسکبن ی وشـــی

زه (حنیفی) پا ره‌کریوا ن کړمه ستا مبنــــــ بـــا ره
ته‌می له ځا نه‌هم راگرا شه اِچی تسکبن م وشـــی

۱۳۶۹/۷/۱۵ دکورا و فترترمنح نه‌موټرکی
پیښو

# گړیدلی نشم

دا به نرخود چاله ویری څه ویلی نشم
زړگی څړیکی به په ډاک بیا نولی نشم

حوله می گنونکی کوټی می بندی له لبکوخنی
زړه می دردیږی مگر دردا ظهارولی نشم

یا به احساس محکوموم یا به می خلک وژنی
دغدارانو غداری جاته ښودلی نشم

په زنځیرونو بم تړلی دخپل کوروگړو
دخپل ضمیراً وارکا غر باندی لیکلی نشم

که غداری بیا سوم را باندی تورلگوی
څه وکړم خدایه! غداری ورته ډاگلی نشم

داسی وخت راغی چی حق تریخ شو له زقومه ځنی
دامرا ونهی حکم چا باندی منلی نشم

دومره فتنی دی چی له خلکو سره لیوان جوړ سوی
لدی لیوانو اسلامی حقوق ساتلی نشم

که په میدان کی ورته وایمه په ځغرده سره
بیا ئی له تورا وله تهمت نه ځان ژغورلی نشم

دا سی نومونه په سړی ږدی چی حیرت یم ورته
با وردی وشه چی بیا ځان تری خلاصولی نشم

دا زولنی دا ستعماریه ما تومه ورونه!
زه دښکیلګرو غلامی خلکه منلی نشم

حق به لیکم حق به ویل کوم ترمرګه پوری
دچا له ویری خوژوندی ضمیروژلی نشم

که می څوک ګوتی پری کوی یا می په دارځیژوی
زه به دحق ناری هسې کرا ریدلی نشم

زه مسلمان یم له جومات نه راڼتلی یمه
له حق نه پرته په بل هول ګړیدلی نشم

ما (حنیفی) دخدای (ج) رسی په صداقت نیولی
دچا زوروسوا ودبا ولاندی راتللی نشم

دهجرت جونګړه پیښور ۱۳۶۹/۷/۷ هـ ش

# د شهید په یاد

شهیده ستا دګر موو ینو طها رت ته سلام
دستا ایثا رګا ن جا رول او دیا نت ته سلام

تړردی سپرود دښمن دسرو ګو لیو په لور
دستا سنګر کورا ودیا را وشها دت ته سلا م

په پا کوو ینو به دی حوری سره خا لونه وهی
په جنتو کی ستا مقا م او منزلت ته سلا م

لوګی لوګی شوې له ا سلا مه قربا نی دې وکړ ه
په وسنو رنګ شوی ستا ایما ن او شرا فت ته سلا م

کړم کړم بدن دی ګرا نه شا هدی ورکوی
په ورځ دحشر دی جلال شا ن او شوکت ته سلام

شهیده وینی دی قبولې شوې دخدای ج په دربکی
ستا درجو ښو مرتبوا و کرا مت ته سلام

په وینو سور بدن دی وروره دا یما ن نه ښه د ه
دستا غیرت ستر ې مبرا نې شها مت ته سلا م

چې دحمزه رض په پله روا ن وی شها دت په مینه
دستا اخلاص مینې جزبې اومدا فت ته سلا م

چې دا سدم بې دی سیراب کړه په سیخلو وینو
له ګران اسلام سره ستا مینی او الفت ته سلا م

چې دحسین رض شهیدیا دګا ردی دوباره تا زه کړ
د محمد ص په دین شهید ستا همت ته سلا م

چې پردښمن دی تررستی سلګی حملې کولی
دستا ثبات عظم متین اوفا طعت ته سلام

چې په جهاد کی دی قدم په صداقت ایښی وو
ستا دا سپېڅلو کارنا موجاهدت ته سلام

چې په مزا ردی تو کیدلی دلاله ګلونه
ستا دزیبا ښکلی مزا رزیب اوزینت ته سلام

چې رنګارنک ښکلې جنډې دې په قبره ربېږی
دستاحریم اوچاپیریال کی هرمست ته سلام

چې دکمون متې دې پرې کړې دا بمان په توره
ستا دهمت غیبی رسا اوفرا ست ته سلام

تا دا لحا دموکرله پوره دجهاد په ټکر
شهیده ستا دا جها دی زورا وطاقت ته سلام

نن دالحا دتیغ رتولیږی دنړی له مخه
(حنیفی) وائی ستا میرانی اوجرئت ته سلام

۱۳۶۸/۱۱/۱۴ هـ ش باغوانان

# دغه ستڕی عاشقان به صبا نه وی

دا دسروگلو دوران به سبا سه‌وی
دغه ستڕی عاشقان به سبانه‌وی

سور شمال به دخزان وربا ندی راشی
دغه باغ چمن بستان به سبانه‌وی

همدا واړه عاشقان ځی له دنیا نه
جفاکاره خوبرویان به سبانه‌وی

ددنیا گر دشت ته‌گوره چی بدلیږی
دغه واړه شاعران به سبانه‌وی

(حنیفی) باندی به خاوری شی امبار
دی به‌ولاړسی صفت خوان به سبانه‌وی

نه به تاج وی نه به تخت نه به‌شاهان وی
فقیران او ملنګان به سبانوی

گردیز .

# اوریمه لمبه یم

ځومره می را وبښ کرله ویده زړونه
ځومره می آزا دکړل زولانه زړونه
ځومره پرگنی می را بیدا ره کړی
ځومره ولسونه می یوموټی کړل
ځومره ولولی می زمزمه کړلی
ځومره حماسی می را ژوندی کړلی
ځومره تورتمونه می روښانه کړل
ځومره وحشتونه می نا بودکړله
ځومره دنگ سرونه می را خم کړله
ځومره خزانونه می بها رکړله
ځومره شوم پلانونه می خنثی کړله
اوریمه
لمبه یمه
شمعه یم
ډیوه یمه

* * *

سوزم وحشتونوکور
دا دښکیلاکونوکور
جوړمی نهضتونه کړل
وبښ می ولسونه کړل

ما ت می تا ړا کونه‌کړل
غوا ړم ا سلامی نظا م
نه منم دهری نظا م
نه دغدا ری نظا م
سوله ا ووروری غوا ړم
مینه‌ا سلامی غوا ړم
پری میږدی چې ا ورشمه
وسوزم کفری نظا م
را شی چې یوموټې شودکفرځا له وړا نه‌کړو
ورکه‌ئی نطفه کړودا لله دزمکی سرڅخی
څومره می را ویښ کړله ویده‌زړونه
څومره می آ زا دکړل زولانه زړونه
ا وریمه
لمبه یمه
شمعه یم
ډیوه یمه

* * *

څومره پا کی وینی را نه تلی شوی
څومره ځوا نکی هیلی می مړی شولی
څومره شا زلمی می نیمه خوا شوله
څومره‌پنیا لی میندی می بوری شوی
څومره ملالی می شهیدا نی شوی
څومره پښتنی پیغلی بی ورونوشوی
څومره ما شوما ن می بی پلارونوشول
څومره زا نګوګا نی بی ما شومه‌شوی
څومره دنګ کورونه‌بی څښتنه شول
څومره جوما تونه بی ا یما مه‌شول

خومره می را وینی کړله ویده زړونه
خومره می آزا دکړل زولانه زړونه
اوریمه
لمبه یمه
شمعه یم
لیوه یمه

* * *

مه کوی چی ورانه به شی
ځما دزخمی زړه په وینو سره خونه
آه به کړم سینی نه به دا ورلمبه رااو باسم
اوربه کړم لمبه به کړم دظلم اووحشت دنیا
مه می کړوی خلکه
پریږدی چی دا خپل نصیب ته وژاړم
پریږدی چی غمونو ته وزګاړ شمه
پریږدی چی وحشت سره په جنګ یمه
ورانه پری دنیا کړمه
کرم زړه پری یخ کړمه
پریږدی چی دخپلو یتیما نوا وښکی وچی کړم
پریږدی چی د ګوندوتسلی ته لړوزګار شمه
پریږدی چی زخمی زړه می ټکور کړمه
پریږدی چی دمه شم کسرا وونوستړی کړی یم
پریږدی چی ټپونه ( حنیفی) ته وروښکاره کړمه
خومره می را وینی کړله ویده زړونه
خومره می آزا دکړل زولانه زړونه
اوریمه
لمبه یمه
شمعه یم
لیوه یمه

۱۳۶۹/۶/۲۰ هـ ،ش باغوانان
پیښور

# جبر

خدا یه ! ته ئی په هرجا مهربان ډیر ډیر
ما غافل بنده کړلی ځوځان ډیر ډیر

ستا صفت رحمٰن رحیم دی ځما ربه
مکرزه په خوب ویده کړم شیطان ډیر ډیر

یونظر دکرم غواړم لنا خدایه !
گناهونه می بی حده پریمان ډیر ډیر

ته می خدای ئی زه بنده یم ستا خالقه
شرمنده به ستا پخوا یم روان ډیر ډیر

که را وه بښی گناوی ځما ربه
زه په خپله یم بی غوره انسان ډیر ډیر

حنیفی ستا په دربارکی په ژړا یم
ځکه غرق یم پرگناکی ببشان ډیر ډیر

لوگر ۱۳۵۲ هـ ش

# لویه خدایه!

لویه خدایه ! دزره صدق اوصفا را
توان دنیکوگوریز له بدوپه دنیا را

چې داستا رضا پوښلی پهٔکی نوی
الهی له داسی کړو ځنی پنا را

تهٔکریم ئی تهٔرحیم ئی ته رحمان ئی
تهٔقادرئی تهٔمحیط په ټول جهان ئی

بریالی موکړی پدی ستر امتحان کی
کوبنده دهرطاغوت اوهرشیطان ئی

افغانان سره یوموټی یو قوت کړی
مجهز ئی په یووالی په وحدت کړی

حنیفی تهٔبه دا مرا وی غوټی گل شی
کهٔتوان من ئی په اخلاص اوصدا قت کړی

پېښور ۱۳۶۹/۵/۵ هـ ش

# که زه شهید شوم موری

که زه شهیدشوم موری ته به ژړا نه کوی
ته به په چیغوچیغوشورو اویلا نه کوی
دخدای (ج) په امرځمه دجنګ ډګرته موری
په شهادت به ځما کړیکی اوغوغا نه کوی

ستا په ژړلو با ندی خدای ج خپه کیږی موری
زما دشهیدوو ینوا جرسلبیږی موری
دژړیدلوپرځای راته دوعا وی کوه
په تحمل اوصبررب خوشالیږی موری

قربانومه وینه لکه حمزه(رض) په ډګر
خورمه ګولی ددښمن دزړه پر سرا وځګر
چی راته وینه ژاړی راته غمجنه نه شی
که شم غلبیل غلبیل شمه پرهرپرهر

زما درګونو وینه راګرمه شوی موری
داګرمه شوی وینه می خوښیدلی موری
یابه شهیدشم په دین یابه بری ځما وی
ځما دننګو نوکاسه راخوښیدلی موری

تا پښتنه غیـــرت کی په ننګ روزلـــــی یمـــه
تا دننګـــو نـــو پـــه ټال کی زنګـــولـــی یمـــه
تا به ېه مینه مینه راته دښمن ښـــودلـــــــو
تا په پتیا ل کهول کی غښتلـــــی کـــړی یمـــــه

زه حماسی جـــــوړوم زه زلزلـــــی جـــــــوړو م
زه به الحـــا دتـــــه مـــوری نن هدیـــری جـــوړو م
زه دا یما ن په توره مجهـــــز شـــــوی یمـــــد
زه سره اورونـــــه وړمه زه‌هنګا می جـــــوړومـــم

که‌زه شهید شوم موری پما ویـــر ونـــه مـــه کـــړه
زړکـــی ته ډا ډ ورکـــوه خـــوشـــی غمونه مه‌کـــړه
د (حنیفی) په‌وینا با نـــدی عمـــل وکـــــو ه
څما دقـــبر خواکـــی ویرما تمـــــو نـــه مـــه‌کـوه

۱۳۶۹/۶/۲۵

جهادکلی

# ورتګور ئی ګړو تپونه

راشی راشی چی ښائسته ئی کړو قبرونه
تاورا تاوکړو ترینه شمی سره ګلونه

چی په وینوئی تمام وطن ګل ګون که
تری قربان می شه په مینه اندامونه

دا سلام تری حرم ئی چی اوبه کړ
راځی بل ئی کړو په قبر ځراغونه

چی نازک بدن ئی غوڅ کړم کړم شو
ځی چی ورشو ورتګورئی کړو تپونه

چی په تن کی ئی سری کرمی ګولی شوی
له هغه زلمی نه جارشه ډیر میرونه

چی شهید شودا سلام په سپینه لارکی
مبارک ئی شه جنت کبی نعمتونه

له هغه شهیدنه ځارځما ځګر شه
چی تا وده ئی کړل په وینه سنګرونه

چـــی ئـــی ســرپه اســلامـــی عقیـــده ورکـــړ
ځـــی پـــوره ئـــی کـــړو سپیڅلی ا رما نونـــه

ځـــی چـــی تـــړه دا ســلام چـــو کا ت کی ووکـــړ و
چـــی به ا خلولـه دښـــمن نـــه کسا تـــونـــه

کمووینـــی دشهیـــد کما ئـــی نه کـــــړی
بیا به نـــه وا یـــو یـــو بل ته ا ی پښتونـــه

(حنیفی) که دی جا می دتن کـــفـن کـــــړی
با وروکـــړه خـــدا ی (ج) به درکـــړی جنتـــونـــه

دهجرت جونکړه ( کور ) ۱۳۶۹/۷/۴ هـ ش

# هوره

کەمی غوبنی پەچڕوکتری کـــــتری شـــــی
تول بدن می پە ا روا ری ا ر ی شـــــــی
دا سلام لەعقیدی نەبـــنە وا نــــــــە وڕ م
کەهـدوکـــی می دتـــــن زری زری شـــــی

* * *

کەپەدی لارەکی وو مـــرمـــە مـــڕنیـــــم
نوشهیـــــد بـــە بریـــا لی یمــە پڕنیـم
خپل هدف تەبـــە رســا اورسیـــدەیـــــم
پەنـــڕی کی بە سرلـــوڕی یم خڕنــــــیم

* * *

دخلیل پە ثیرمی ودا نکل لمبـــو تـــــە
دشهیـــد پەوینــو کــــرمو سنکـــرونـــــە
سنگرونەدجها درا تە کلـــزا ر شــــــــول
عبرت نا کەدرس می ورکڕسروپوځـــــوتــــە

* * *

تیرتا ریخ دغزنـــویا نومـی ژونـدی کـــړ
ا ښتعما رته‌می ختیـځ ا زغـی ا ز غــی کـــړ
دا لحا دجرړی می وا یستی لـــــه بیخـــــه
دکمون می ورته سوړگـــرم نغـــری کـــړ

*　　*　　*

(حنیفی) دخپلوا کی په لـــوری د رومــــه
دښکیل گروورته‌پریکړه دښکیـــل لـــومـــه
چی ترپا یه بیا تا ریخ تـــه‌وی سرښکتـــــه
تما می کفرزلیل کړه‌ا و مغمـــــــومـــــه

با غوا نا ن

۱۳۶۹/۳/۲۲ هـ ، ش

# حسرتونه

په تقدیر کی راته ښکل دی کړاوونه
په نصیب زما هزار هزار غمونه

یوساعت می خوشحالی په برخه نشته
په هجران کی می لوګی شول ارمانونه

چی دا خپل نصیب ته ګیر شم ژړا راشی
له چشمانو می شی سرخو ناب رودونه

کاشکی نوی راپیدا په سر دځمکی
چی می نوی خاوری شوی اُمیدونه

هرطرف ته سترګی اړوم رندیږم
ناکړدو می دزړه غوځ کړل تنابونه

زه دوخت دفتنو زړ ندی یم دل کړی
نا ببره می نسکورشول ډک جامونه

تورلوګی می له دهانه رابهرشو
دفراق په اورمی وسول اندامونه

چې دجبر سمندریم لاهو کېږي
دنجات په لاس را نغله گود رونبه

چې له ستونې مې حلقه شوما ردزلفنو
هغه دم ئې په زړه را کړه لو تکو نه

دا لحا دئې په کور را غله سیلابو
(حنیفي) لادځواني په خوند پوې نه وو

اسدالله (حنیفي) ۱۲/۲۰/ ۱۳۶۵ هـ ض
پېښور

# د مبر نو وطنه

ځما وطنه دموږ منوپـــرگنـــو وطنــــــه
ای دبا تـــــو رو ننگیـــا لیومیړ نووطنــه

ستا دپا میرپه‌گړنگونوکـــی با زا ن ا وسیـــږی
ای دتا جکودا زبکوپښتنـــو و طنـــــــــه

تا ټکـــولـــی ځوځوا ره یرغلگـــر ځوا کونــــه
ای دغا زی مشک علم دتوریا لـــــو وطنـــــه

سنگرسنگر ئی ددښمـــن کودی دی ړنگه کړلــه
دا بدا لی دغزنوی دپـــــر گنـــــو وطنـــــه

درتـه‌سرټیټی دی دعصرطا غوتـــــی ځوا کـــونــه
دبا همتـه‌ولسونـــو دپښتـــــو وطنــــــــــه

دښتی میـــری دی ښا ئستــــه دی دلالــه پـه‌گلــــو
دزړه را ښکونکـو ښا ئستـه‌ښکلـودرو وطنــــــه

حنیفی تا نـه‌مها جردی لالـــــه هـــــا نـده‌گرځی
دهرا فغا ن دزړه سکـــون ددنگوغـــرو وطنـــه

۱۳۶۹/۳/۲ ه ، ش جها دکلی

# ای دسنګر زلمیه!

ای دسنګر زلمیه! – ای زړه ور زلمیه!
ستا له سنګره قربان – ای دلاور زلمیه!
ای هوډیالیه ځما!
ای ننګیالیه ځما!

دا یرغلګر پوځونه – دا وحشت ګر پوځونه
تا سرنګونه کړله – دا سره سوړ پوځونه
دننګ نیښانه ځما! – غښتلی ځوانه ځما!
ستا له همت قربان – مړ افغانه ځما!
ستا کارنامو ته سلام – ای توریالیه ځما!
ای هوډیالیه ځما!
ای ننګیالیه ځما!

ای دځواکونو میره! – دپښتونو میره!
کمون دی ونړاوه – دغورزنګونو میره!
سلام سلام شه پښتنا – رحم مدام شه پښتنا
دروسي په وړاندې درېدې – درب نعمت شه پښتنا
کفر دې وپسرزاوه – ای جنګیالیه ځما!
ای هوډیالیه ځما!
ای ننګیالیه ځما!

تەجھا دونەکـــوی ــ پری غورزنگونەگوی
پەملحدینوبا نــدی ــ همیش بریدونەکــوی
تا حما سی کړی جوړی ــ تا زلزلی کړی جوړی
دسرەوحشت پەزوکړه ــ دی هدیری کړی جوړی
تا نەلوگی لوگی شم ــ ای بریا لیەځمـــا !
ای هودیا لیە ځمـــا !
ای ننگیا لیەځمـــا !
ای مسلما ن اتلە! ــ ای دا فغا ن اتلــە!
دښمن دی ما توګوډکه ــ دتهول جها ن اتلــە!
دجگو غروزمریـــە! ــ دسردروزمــــریــە!
سرەیرغلګردی‌ماتکړه ــ دکړنگو زمـــریــە!
د"حنیفی"جا نا نە! ــ ای میړنیەځمـــا !
ای هودیا لیــە ځمـــا !
ای ننکیا لیە ځمـــا !

۱۳۶۹/۳/۱۲ هـ ، ش جها دکلی

# شیلی د انقلاب کی

دهری زړونه به وچوی کمون به نا بودیږی
زمونږ په دنګو غروکی دطاغوت زامه ما تیږی

ښکیلاک په زنګدن دی سائی ستونی ته راغلی
شپیلی دا نقلاب کی دبری اوازپوکیږی

که نن وی کمسباوی دالحادمهی به پری شی
کاروان دانقلاب موخپل هدف ته ورلندیږی

تیاری موکړی نابودی توری شپی مو کړی په مخه
وړیوی دآزادی مودتن وینی څکی بلیږی

داستری سری هیلی به دهغی مورپوره شی
چی کورئی کنډوا له شوزوی ئی وینوکی شلتیږی

دا سترا سلامی ځواک به دباطل کوپره کړی ما ته
موږ منی پرګنی موښی پدلوړموراڵ جنګیږی

دالویه قافله به موآخرهدف ته رسی
بیړی دانقلاب مو دساحل خوا ته رسیږی

دا سوردا سرا فیل دی که تکبیـــردا فغا نا نـــــو
په غږئی لـه هیبتـه سری ما ښــی گوری نـړیـــږی

بـها ره را شه ! را شه ! چی رنگین دی کړوپه وینـــو
زمونږدبدن وینی لالـه دینـه هم گـــــرمیـــږی

که‌نا سته‌وی که ملاسته‌وی که‌ژونـــدوی که‌مــــرد ن
با ربا ر ( حنیفی) وا ئی په ا سلام کــی دی تیریږی

جمعه ۱۳۶۹/۷/۶ هـ ض
پیښـــو ر

## څو به ځما قلم ګيلي ليکی

بيا مي قلم خوځی په خوځښت شوترانی ليکی
وينه تري بهيږی دسرووينو پيمانی ليکی

ورانی شوی کوډی دمظلومانی خونی رنګی شوی
دغوکنډوالو نه ديتيم کوکی ناری ليکی

هره خوا بريدونه دی جنګونه دی مرګونه دی
جنګ ليکی وژل ليکی بريدونه اوحمل ليکی

کوم ظلم به و ليکی نړی ظلم په مخه کړه
نوک دقلم چووی چی دظلم افسانی ليکی

څومره ميندی بوری شولی څومره خوندی وراری شوی
څنګه به تواني‌ږی چی داسترړی حاديثی ليکی

ګوټ په ګوټ نړی کی مسلمان سوځی اورونوکی
ليکی دبارو دودا ورونوسری لمبی ليکی

لرېو ښکيلاکونوپه ښيوزلوجنـګ تپلـى دى
څوپـورى به جنګ وى څوبـه دا قلم جګړى ليکـى

وينى دى روانى دريا بونه ترى جورشـوى دى
څکه مى قلم ټولى کيسى په وينوسـرى ليکـى

سره پوڅونه مات شـول دموږ منو پـرکنوله خوا
هرقلم چى خوځـى نوننګونـه حماسى ليکـى

ژاړى (حنيفى) دمسلمان په حال په کـرېکـودى
وائى لويـه خـدايه ! څوبه څما قلم ګيلى ليکى

۱۳۶۹/۷/۱ هـ ش دهجرت جونکره

# غلام دستا

خوک چی وا وری خوږشیرین کــــــــــلام دســـــــتا
شی بیزا رله بلی خوا پـــــه نـــــا م دســــــتا

کله کله چی نظروکړم خپــــــــــــل حــا ل تــــه
وا یم کا شکـــی وی نـــو کــرغـلام دســـــتا

خبرنیمه پـــه شا م اوپـــــــه ســـــــبازه
مینی هیرکـــړ لما صبـــح ا وشـــــا م دســـــتا

ســرنـگون لـه غمه پـرو ت یـــم په بسترکـی
زه رنځو ردعمرکـــړم گلفـــا م دســــــــــتا

هسی مست یم لکه مست چی ځوک شــرا ب کـــړی
چی می نوش کړیود میني جــا م دســـــــــتا

حنیفی لـه همه وا ړولاس پـــــــه ســـــریــم
چی مـــی ولیـــده پــــه نا زیـــو گا م دســـتا

کا بل: ۱۳۵۲

# زما گرانه هیواده!

ځما گرانه هیواده! سلامونه درلیږم
په ښوهیلو پوسلې پیغامونه درلیږم

سلام مې په هرآن شه ستا په دښتو په سیندونو
سکون ځما دزړه ئې تیریا دونه درلیږم

کمونږ خزان کړی د بار وتو په لمبو
دګلو ګل دستوکې بهارونه درلیږم

دسروو ینو لښتی دی چې بهیږي ستا سینه کې
ځما وینه درنه ځارشه یکجا مونه درلیږم

تیارو دوحشتونو دی فضا کړه خره پره
ډیوی مې بلی کړی مشالونه درلیږم

ورمات به سره بوتان کړم په الحاد به موږکړم بوره
هیواده! ستا حرم ته تاړاکونه درلیږم

موجونه ئی کړه پیل دشهیدوینی په جوش شـــوی
تری جوړبه رودنیل شی توپا نونـــه درلیــــږم

دا لوئی قا فلـــی به ستا ولورتـــه درخوځیـــږی
دهجردنیا گـــی نه کا روا نـــو نـــه درلیـــږم

دستا په دنگوغـــروبه آ زا دی ږیـــوی بلیـــږی
کهنن وی که سبا وی خرا غونه درلیـــــــږم

هیوا ده ! خومره‌گرا ن ا وخومره خوږئی (حنیفی)تـــه
زړیږم په فرا ق دی فریا دونـــه درلیــــــږم

دهجرت جونگړه (کـــور ) ۱۳۶۹/۷/۲۷
پیښور




دا ستا وروووروسلګو ته سلام
یتیمه ۱ ستا کو کو نا روته سلام

یودی دسو ی زړه له آه نه لوګی
بل دی چا ودلو لو ځو پښو ته سلام

چی تړمی ا وښکی دی ګریوا ن ته درومی
دا ستا دا وښکو قا فلو ته سلام

دا سپیره مخ ا وببر سردی ځا رشم
ستا په لمبو سو یو ا سروته سلام

چی آرزوګا نی دی لمبه لمبه شوی
ستا دما شو م زړګی آرزوته سلا م

چی دخپل پلار په مزا رکړیکی وهی
ستا دا ما تم ویر غلبلو ته سلام

په وړکو توا لی چی بی پلاره شولی
ستا دا بیوزله ورځو شپو ته سلا م

تەچې دپلارفــــرا ق ا يــره ا يــره کـــــړی
ستا خـــا وری شـويـــو ا ميـــدوتـــه ســــلام

چې بې ا ســری بې سرپرســـته شـولـــــــی
ستا بې کســـی ا وحـــــسرتـــو تـــه ســلا م

چې دنيستی تـــو پـــا ن پـــه مخـــه کــــړلی
ســــتا دا لـــــو خ ســــر خيـــری جا موته سلا م

چـــی دکــــړا وژرنـــدی ميـــده ميده کــــړی
(حنيفی) وا ئی ستا دردوتـــــه ســــــلام

۱۳۶۹/۷/۲۰ ه ش کمپ با غوا نا ن
پيسا و پيښور

# شکوه او حکایت

دا وحشت دا وحشتونه
دا يرغل دا يرغلونه

چې مظلوم په کې کړيږي
دا تورتم دا تورتمونه

دا سپيره سپيره بادونه
دا سيلي سخت توپانونه

چې يتيم په کې لړزيږي
دا دلي دلي غمونه

دا دسوي زړه آهونه
دا ناخوالې دا ظلمونه

چې انسان په کې سلگي کړي
دخرخي پله زندانونه

دخرخي پله زندانونه
دول دول شلاقونه

چې زغملې ئې خوک نه شي
دبنديانو کړاوونه

دغه دولس تير کلونه
دوحشي کمون ټانکونه

څومره وران څومره ویجاړ شول
دا خاورین خاورین کورونه

د پکتیا د غرو سرونه
کندهار ښکلی باغونه

په لمبو کې لو لپه شول
ګل غوغنډی تنکی ګلونه

دا ساړه آهونه
دا د کونډو آوازونه

څوک ئې ناوری په غوږونو
دا د بوروپریا دونه

دا په وینو سره لاښونه
دا د وخت سپیره تهانګونه

انسان څنګه ژوندی پائي
څومره سخت ئې شو لهزړونه

دا د شوبلو تاړاکونه
دا تش لاسی غورځنګونه

څه ځوانان وینو کې سره شول
دا له تنه بیل سرونه

دا درانه درانه توپونه
دا درجن درجن جازونه

څه ظلمی ئې شهیدان کړل
تله وینو ډک رودونه

دا په هر کورکې ویرونه
ژبغړاندی امیدونه

څنګه وسول په لمبوکی
تاریخی زاړه دودونه

دا نیمګړی ارمانونه
دا سپیره سپیره مخونه

دمظلوموافغانانو
په نصیب شول غمونه

تیر شو تیر شو دیر ګلونه
دوام دا رشول شبخونونه

(حنیفی) زړه به دې وچوی
بس دی بند کړه نورشعرونه

۱۳۶۸/۹/۲۱ هـ ش

چرا ت دجمعیت طلبه دفتر

# دغسی ښه یم

په اورسو ځم دهجران دغسی ښه یم
په ژړا یم هرزمان دغسی ښه یم

چې می مینې دخو بانو ته نظروو
که‌می پاره شی گریوان دغسی ښه ینم

چې می شپې ورځې خوښې کې تیرولی
خودپه گرزم سرکردان دغسی ښه یم

چې دیدن به می کاوه دخپل جانان
اوس جدا په ویر ارمان دغسی ښه یم

چې به ماورته کتل یار به خندا کړه
اوس شړلی په گریان دغسی ښه‌یم

۱۳۵۲ هـ ش گردیز

# د مجاهد غږ

ځما وطنه ستا لـه دنګو دنګو غرونـه‌لوکـــــــــــی
ستا پـه سینـه‌کی دجها دکرمومـــرچـــو نـه‌لوګـــــی

سنګرسنګرئی ددښمن خونـه دی ورانـــــــه کړلـــــه
ستا دپا میرا وهندوکش لـه‌کړنګـــو نـــــه لوکـــــی

دا لحا دجرړی دی خنـشـــی کړی (ا حمدشا ه )وطنـــــــه
پـه‌شهیدا نوښا ئسته ستا هدیـــزو نـــــه لوکـــــی

چی ستا پـه‌غیرکـی مـــی خوبـــو نـه دغـرمی‌کـولـــــه
ا وس دی دښمن سره پـه جنـــکـکی لـه غرمونـه‌لوکـــی

پـه‌هردیا رکـی دی میشته دی موء منا ن وطنــــــــــه
ستا دموء منوپرکنـــو لـه حوطلـــــو نـه لوګـــــی

دتن پـه‌وینـوبـه‌تا زه‌کرم ستا خـــزا ن کلبـــو نــــــه
کـه‌شم کبا ب پـه سرو لمبـوهغو لمبونـه لوکـــــی

ریښتونـی زوی دی یم وطنـه قربـانـــی مـــی ګـــوره
مینـه‌دی بـرخـه‌دا یما ن ده ستا درونـــــه لـــوکـــی

کـه ســی می ښخی پـه ځکـــر کی دبـمونـو چــــر ی
ستا محبت کی ددښمن دبــم جــرونـــــه لوکـــــی

کەشم توتە توتەوطنە هیڅ پروا می نشتە
خوستا دمینی لەجزبوا وولولو نە لوکی

کەمی بدن تیکە تیکە شی ددښمن پە چړو
ستا مقابلکی ددښمن تیرو چړو نەلوکی

کەدځرخی پلە زولنی مبی لاس او پښی ما توی
دومره مین یم چی لەهغو زو لنونەلوکی

کەغرغرە می کړی پە دارځوک د (منصور) پەرنګی
ستا پەاړوندلە هغە دا را وغرغرونە لوکی

پەغلیما نوبەدی میندی بوروم وطنە
ستا لە دا ورا نوجوما تو نوا وحجرونە لوکی

نکړم خوبونەڅومی ستا دښمن ځپلی نوی
ستا د (کوکچی) او د (هلمند) یخوا وبونە لوکی

چی صفتونە دسنکرا ودغا زیانو کوی
د (حنیفی) لە دا خوږوخوږوبیتو نە لوکی

١٣٦٨/١٢/١٤ هـ ش دهجرت جونګره

# آزادی ته

ترخی ترخی شپی تیروم ستا درا تلوپه تمه
دکمون جر ړی پری کوم ستا درا تلوپه تمه
دوروړپه وینه تودسنگرپه خپله وینه ساتم
دګکروینه ورکوم ستا درا تلوپه تمه

دا دولس کاله دول دول کړا ورنه گوره
پدی بهیرکی عزاب څه شها دتونه گوره
کلی باندی می شولی ورانی ستا په تمه باندی
دآزادی شمعی بلیږه زندانونه گوره

جنگ او جگړی می له دښمن سره دپت کولی
په سرولښکرومی حملی په مطانت کولی
دغلامی ځنځیرمی غوڅ که دا یمان په توره
دجنگ مرچلوکی می شپی په صدا قت کولی

اوس تورتمونه کړه روښانه خپلووړانکو باندی
دیوی کړه بلی په قبرودشهیدانوباندی
دو را روبو رو په کریوان روانی اوښکی کوره
لاس دتسل کیږده په سر دیتیما نوباندی

د ( حنیفی ) په کران وطن کی ولولی جوړوه
په مسلمانو پرکنوکی حماسی جوړوه
آزادیه سرکښړه را وچت دلمرخا ته لهلوری
دابدالی په مینه شپی وکړه میلی جوړوه

باغوانان ۱۳۶۹/۳/۹ ه س

# شهیدان هیروی ولی؟

کورپه کورکلی پەکلی یتیما ن هیروی ولی ؟
دا پەسرووینوکی لت پت شهیدا ن هیروی ولی ؟

کانی بوتی دوطن دی پە سرووینورنگینه شول
شنی تپی پەلمبوسوی دپغما ن هیروی ولی؟

راتەبکاری چی دنگ غرونه دوطن درنەهیرشوی
لوری څوکی دپا میرا ودواخا ن هیروی ولی؟

تول وطن ئی درتەورا ن کەدا لحا دوحشی لبکرو
وحشتونەدرنەهیرشول سرەروسا ن هیروی ولی ؟

غرونه دبنتی او میری ئی پەمینونودرتەفرش کړی
پەمیرا ث لەروس نەپا تەا رمغا ن هیروی ولی ؟

چی یونیم ملیون ځوانان دی لەا سلامه قربانی شول
دا لە دینەلەا سلامه قربانیا ن هیروی ولی؟

دا دکوندوبوروورا روفریا دونەولی ناوری
دا پە ترمو ترموا وبکولوندگریوا ن هیروی ولی ؟

هدیری شوی درته جوړی له سپېځلو شهیدانو
تری تم درنه‌ورک شوی اتلان هیروی ولی ؟

چی ویالی دی را روانی له‌هرکوره‌دسروویئو
تری جوړشوی دا دوینورودروان هیروی ولی ؟

څومره پېغلی دوطن دی حسرتونوسره لاړی
دغه‌رنگی نیمه‌خوا تللی ځوانان هیروی ولی ؟

دملت په‌حال خبرشه‌دسره‌اورپه‌مینځ کی ژوندکړی
دهجرت په دنیاگی‌کی افغانان هیروی ولی ؟

ستابهیردرومی خوځیږی دهدف لورته‌روان دی
دا په څه‌شوی پټی سترگی داکاروان هیروی ولی؟

حنیفی درته‌گویان دی دبلبل په ژبه‌واوره
دا پټمن اوننکیالی افغانستان هیروی ولی؟

۱۳۶۸/۱۲/۵ هـ ش جهادکلی

# د هری ټولو
# بانډوکی

په هری کی ویرژړا وه، چی دوهمه کربلا وه
څومره وینی وی روانی، څه د ظلم انتها وه
د آسمان لمنی سری وی، ځای په ځای ناری سوری وی
هر سړي وینو کی رنګ وو، وحشتونو نظاری وی

په هرات کی توره شپه وه، څومره ستره سانحه وه
زښت زیات خلک شهیدان شول، څه د غم پیښه قصه وه

سری ګولی را وریدلی، هر خوا وینی بهیدلی
ټول هرات کی جوړ ماتم وو، بوری میندی ژړیدلی

توری وریځی را خپری شوی، آرزوګانی هیلی مړی شوی
خوشالیو کډی وکړی، د غم ویری بستری شوی

کور په کور د ښار کوڅو کی، د هری ټولو بانډوکی
هر مؤمن په غم اخته وو، د هرات د ښتو میروکی

په هرات کی ویرا و غم وو، هر خوا ژړا ماتم وو
ترمی ترمی اوښکی تللی، هر سړی سترګو کی نم وو

خزا ن توی کړلدګلونه ، نیمه‌خوا شول اُ میدوه
نن نه‌دولسکا له‌وړا ندی تا ړا ک وځپله زړونه

په‌وحشت یکه‌فضا وه ، په هرا ت‌کی ویر ژ ړاوه
څومره‌میندی شولی بوری ، په‌هرکورکی وا ویلاوه

را خپری توری تیا ری شوی ، په‌هرا ت می زلزلی‌شوی
روستنی ا ونې دکب وه ، چی له‌روس نه‌پری‌حملی شوی

څه‌دوینو رودروا نوو، په‌ژړا ځمکه‌آ سما ن و و
دهرلوری دې وې مړې وې ، ز لزلی سره‌توپا ن و و

په‌زرکونوشهیدا ن وو ، په‌هرکورکی ها ی فغا ن و و
(حنیفی) له غمه‌نه‌مړ ،چی ورا ن شوی خرا سا ن و و

۱۳۶۸/۱۲/۱۵ هـ ش پیسور

# سربنکته سرنگون دی

بیدینی تغرتولیږی دالحا دزړه پهچا و دون دی
سوروحشت به را پورزیږی ورتهشوی لوی ترون دی

افغانانو له همت نه د (لینن) فارمول خنثی شو
فلسفهٔ ئی شوه مردوده را دبره ستربدلون دی

سرهبنکیلاک زامه کړه ماته د (میرویس) خیکه لمسیانو
استعمارکړی شوی غوځی کوروران شوی دکمون دی

دغرورله تخته پریویست افغانی مجاهدینو
سورمادی ځواک افغانانو ته سربنکته سرنگون دی

سرهپوځونه په گوندوشول دموء من ولس په وړاندی
آریانا په سردروکی بریالی اسلامی یون دی

توری شپی بهروڼ سحرشی که دلوی الله (ج) رضاوه
دسباسترکه راخیژی دا شمال دسباوون دی

کوټ پەکوټ تولە نړی کی ولسونەپا ریــــدلـــــی
دطا غوت خونەورا نیږی لورترلورشوی پا خــون د ی

دا نهضت دا فغا نا نوبەورمیږدکمون مــا تکـــړی
درومی درومی وړا ندی درومی پوریوتیلەجیحو ن د ی

دآ سیا دزړەلەتل نەستربهیـــردی خوځیـــدلـــی
دموء من ملت خوځښت دی کمون ګکه جگـــرخـون دی

دا لحا دبت را نسکورکړد ( محمود ) نکوورزمـــریا نـــو
(حنیفی) دا ستا دشعرګکەخوږشرین مضمـــــون دی

۱۹/ ۱۲/ ۱۳۶۸ هـ ش جها دکلی

# رانه لاړ

له غمو ئی په ګریان کړم رانه و لاړ
له ژړائی تر ګریوان کړم رانه ولاړ

چی مین ئی کړم نظرئی په مانو ر
سک نیران کړم رانه و لاړ

ګرفتار ئی کړم په سترګو جادوګرو
دبدن ئی په سوزان کړم رانه ولاړ

یوستی لکه پتنګ په سرو لمبو شوم
بل رسوائی په جهان کړم رانه ولاړ

خدایه ! خنګه بی وفا ئی په نصیب شو
زه ئی دخپل ژوند په ارمان کړم رانه و لاړ

( حنیفی ) نه بی جفا وی هیری نه شی
زی په لاره کی حیران کړم رانه ولاړ

۱۳۵۳ هـ ش لوګر

# هغه وعدی دي څه شوی؟

هغه احساس او هغه درک هغه جزبی دی څه شوی ؟
هغه دردونه درسره هغه غوسی دی څه شوی ؟

چی شپه او ورځ دی په دښمن باندی بریدونه کول
هغه تودی تودی دننګ ډکی حملی دی څه شوی؟

چی یرغلګرو سرورو سانوته دی ماته ورکړه
اتل ولی مجاهدتا و حماسی دی څه شوی؟

چی خوبولی ولسونه دی له خوبه ویښ کړه
راپارونکی خوږونکی ولوولی دی څه شوی ؟

چی دیتیم په حال دی ورځ په ورځ په چیغو ژړل
هغه له سترګو سرخونا ب او ښکی ویالی دی څه شوی؟

چی دې ملت سره لوظونه او وعدی کولی
هغه دستور هغه وصیتا وقوماندی دی څه شوی ؟

په ګردی میزچی له دښمن سره پلانونه تړی
آدافراط له زوره ډکی پټکی دی څه شوی ؟

چی تاله خپل مسیرنه کوږ شوی دغلیم په لیکه
دملت سوال ته ځواب ورکړه فیصلی دی څه شوی ؟

د "حنیفی" دحسرتونو کوردی ړنګ او ونګ کړ
هغه جزا بی زړه راښکونکی بیانی دی څه شوی؟

۱۳۶۸/۱۲/۲۳ هـ ش دجمعیت طلبه دفتر

# څه د ظلم پیلامه وه

دا دشورکودتاوه ، که دوهمه کربلاوه
چمچه مست پکوولهوینو ، څه دظلم انتهاوه

داسمان لمنې سرې وې ،څه دغم نارې سورې وې
هرسړی وینوکی رنګ و ،وحشتونونظارې وې

دا دشورفاجعه وه ،څومره ستره سانحه وه
ازادی شمعه ئې مړه کړه ،څه دظلم پیلامه وه

سری ګولی را وریدلې ، هرخوا وینی بهیدلې
په کابل کې جوړماتم وو ،بورې میندې ژړیدلې

تورې وریځې را خپرې شوې مارزوکانی هیلی مړې شوې
خوشالیوکډې وکړی، دغم ویرېبترې شوې

دنګو دنګو غروسروکې، دپغمان ښکلوتپوکې
بلبلان په غم اخته شول، هندوکش په ګړنګوکې

غم دغم دپاسه غم وه ،کورپه کورویراوماتم وه
ترمې ترمې اوښکې تللې،هرسړی سترګوکی نم وه

خزان توی کړله ګلونه ،نیمه خوا شول امیدونه
نن نه دولس کالهوړاندی ، تا پاک وځپله زړونه

دا دشورکود... وه ،چاستون کې ویرژړا وه
ازادی طوطی بندی شو ،دبلبلووا ویلاوه

را خپری تورې تیارې شوې ،خپلوا کیودیوې مړې شوې
(حنیفی)حونه شوه ورانه ،پدوطنئې زلزلې شوې

دفتر طلبه دجمعیت چراټ ش ه ۱۳۶۸/۹/۲۳

# راباندی وژرل

زه چی آواره شولم جهان رابانــــدی وژرل
دومره‌یر مظلوم سوم چی آسمان راباندی وژرل

څکه چی په‌کورمی ستر یاغی فوت راودانــکل
غرونه په ژړاشوله‌دامان رابانـــدی وژرل

زه خو‌یر غریب وم ورک له کوره‌په یو‌ی پسی
جنگ ته‌چی مجبور شوم زوړ اوځوان راباندی وژرل

وینی می شوی تویی‌دوطن په‌دښتوغرونوکــی
وی هوکل کلونه بیابان راباندی وژرل

کورمی‌چی تلا ولا دوخت وحشی لښکروکــه
تشودیوالونوکی نالان‌راباند ی وژرل

زه ئی چی زندان ته‌تتل گاته ور روانکړمه
پیپه چوپه‌خوله باندی زندان راباندی وژرل

څنگه به څوک نه ژاړی دظلم انتهــا گــوره
هراحساس لرونکی آن په آن راباندی وژرل

وسوی غزونی له‌قلم د (حنیفــی ) څنــی
نرک دقلم وچاو دقلمدان راباندی وژرل

۲۰ - ۸ - ۱۳۶۹ هـ ش باغبانان پیښــور

# والله چې مینی دی همت
# د ابدالی راکړی

وطنه ستا ښکلو درو ښکلو ورشو ته سلام
ستا دننګو غرو ښکلو لابنو پلنو میرو ته سلام
د سرپه بیه به لتا نه دښمنان شرمه
ستا دپا میرا وهندوکش لوړو سـ وته سلام

تا دی روزلی خپله غیږکی اتلان وطنه
دا حمدشاه "ا و "غزنوی" په څیر ځوانان وطنه
څما وطنه ستا سینه کی عظمتونه وینم
تا پرزولی همیشه خپل دښمنان وطنه

د مسلمانو پرکنو دهمتونو کو رئی
دسیا ل دا ریو دننګو نو غیرتونو کورئی
تا ته کوی سورا ستعمار دعظمتونو سجدی
ته د ځوا کونو غورځنګونو نهضتونو کورئی

تا دوهښت خونه کړه ورانه د همت په توره
تا دکمون زا مه کړه ماته دوحدت په توره
تا په کوندوکه دبی پته کمو نیزم
دسره ښکبلاک مری دی بری کړه دعظمت په توره

تا نه‌زا رشوی په لکونوا فغا نا ن په مینه
لاهم زا ریږی ورته‌گو ره شا زلمیا ن په‌مینه
یوشهیدیږی بل وردرومی شها دت په طرف
پروا نه‌گوره ځنکه ځرخي دنیرا ن په‌مینه

زه "حنیفی" ستا په‌جونګړه‌کی لوی شوی یمه
خدا ی (ج) گوهیواده‌طوفا نونولږ زولی یمه
وا لله چی مینی دی همت دا بدا لی را کړی
دوخت ظلمونوستا سینه‌کی په‌ا ورسوی یمه

# مه راځه اختره!

مه راځه اختره دا زمونږ ورانو کورونو ته
نشته خنداګانې څه را غواړې دې غمونو ته

هر کور کې ماتم دی ویر ژړا وی فریادونه دي
څنګه به دې لمانځو کوره جنګ او جهادونو ته

لاړ شه را نه لرې خنداګانو ته وزګارتیو
ولې را روان شې سرو په وینو سنګرونو ته

کور په کور د وینو سرې ویالې ګوره روانې دي
وګوره د پیغلو په سرو وینو سرو لاسونو ته

مه راځه اختره دا زخمي زړونه سکنې ولې
وګوره د کړنګو بورو ورا رودریادونو ته

دولس کاله وشول چې زمونږ وینې روانې دي
وچې نه شوې ګوره تری روانو سیلابونو ته

څومره ظالمي ورکړ شول څومره د پیغلې نیمه خوا شولې
اې دښمنه خبره اوسې خو ورکوه ظلمونو ته

خو مره مدرسی او جوما تونه موروس ورا ن کـــړلـه
ورشه ورته گوره زمونږ ورا نو جوما تونو تـــــــه

زمونږ دینیما نوترمی ا وښکی ځی روا نـی دی
وگو ره ا ختره ږدا دا وښکو دریا بـونـــــوتـــــه

کډی شولی وینی تړموا وښکولدریا ب ســــــره
زیری دحریت دی دا بیوزله ولسونـــــوتـــــه

وینی به کړی بلی نن سبا دا زا دی دیــــــوی
ا ی ا ختره ږ تم شه ا نتظا روکړه وختونوتــــــه

درو می (حنیفی) دا قا فله به خپل هدف ته ځـــــی
نه گوری دهیچا خندا کا نوا وویرونـــــوتـــــه

۱۳۶۸/۱۱/۲۵ هـ ش با غوا نا ن

# مسلمانه ولی؟

په پلورل شویوپسی لاڕی مسلما نــــه ولــــی ؟
په‌ا رتدا دکی خیرغوا ڕی مسلما نــــه ولــــی ؟
دحنیفی مذهب سپیڅلی اڼردی خوشی کړلـــــه
ددنګ ګړنګ په‌سرولاڕی، مسلما نــــه ولــــی ؟

له مقدسی‌لاری کوږسوی ضلالت په لیکـــــــه
مذهب‌دی‌پریښودشوی‌روا ن دوها بیت په لیکـه
په‌حق دی سترګی شولی پټی دبا طل ملګــری
موږ من ا فغا ن وی‌اوس دی وینم‌شرارت په‌لیکـه

ته‌دچمن تکل کوی خوشی بیا با ن ته‌درومــــی
دجنت لاری لټوی ځیرشه‌نیرا ن ته‌درومــــی
حق درته‌ښکا ری سری سکروټی دغلیم‌په‌ژبــه
سترګی کړه‌لوځی بیخبره‌ئی زندا ن ته‌درومی

له‌نا جیه‌فرقی بهرشوی بی همته غلــــــه؟
دحق له‌دلی مرورشوی بی همتــه غلــــه؟
دمسلما نوپه‌ټولنه‌کی فتنی جـــــو ړ وی
ما ړدلسنړنی بدبـــرشوی بی همتـه غلــه؟

دحق له‌کرښې منحرف شوی دلوټونو په لور
دوها بی(جمیل را مان) دنیرنګونو په‌لور
کوردی خراب بیړی دوبه‌شوه خبرشه‌په ځان
پلوری ایمان دړومی روان ئی کنړونوپه‌لور

د(حنیفی)افغانستان کی دی ماء وانه‌وینم
توری تیاری دی دی په‌مخ درته‌رڼا نه‌وینم
هسی فتنی را جوړوی څما دملت په‌لوری
مینځ دا حنا فوکی دی ژوند،پاته،بقا نه‌وینم

۱۳۶۹/۱/۲ هـ ش جهادکلی

# دی موجونو سره څه وکړو

خدایه له دی ستونزو کړاونو سره څه وکړو
ستا په دی جهان کی دی غمونو سره څه وکړو

شپه چی سبا کیږی نوی نوی فتنی سرباسی
موج وهی فتنی دی موجونو سره څه وکړو

خلک پاسبانی دضلالت اوبدعتونو کړی
مونږ دی ضلالت اوبدعتونو سره څه وکړو

ستا د دین په لارکی خدایه خلک راته خنډ شوله
دیرورځنی تنگ سوُدی خنډونو سره څه وکړو

نوی نوی لاری ئی په دین کی راپیدا کړلی
دی اغواکونکو فریبونو سره څه وکړو

نوی مسلکونه‌را پیداشول دا سلام په نـــــوم
کړوټـی په زړادی مسلکونو سره څه وکــړو

څوک شوه وها بـی ، څوک مودودی،څوک پنجپیری شوله
اور دضلال بل دی دی اورونوسره څه وکــړو

ستا په‌خوږ اسلام باندی له هرپلوه برید شـــوی
کوم یو برید به شنډکړو دی بریدو. نوسره‌څه‌وکړو

بل طرف موکورکی دنفاق (زقوم) ریښی کـــړی
وائـی (حنیفـی )دومره‌گوندونوسره څه وکــړو

ته راسره مل شې ټول مشکل راته آسانه کـــړی
مونږه یو عاجز دی گړنگونو سره څه وکــړو

۲۵ - ۸ - ۱۳۶۹ هـ ش

دهجرت جونگړه پیښور

# اسلامي ترانه

دروميي سنګرونوته په مينه ځي روان دي
دا مجاهدان دي دا مجاهدان
دا اسلامي سترنهضت، جوړ شوله مؤمن ملت، جوړ شوله مؤمن ملت
تيرچي له بچوله مال او سرداوله ځان دي
دا مجاهدان دي دا مجاهدان
دروميي سنګرونوته په مينه ځي روان دي
دا مجاهدان دي دا مجاهدان
ويښ ئي ملتونه کړل، جوړ ئي غورځنګونه کړل جوړ ئي غورځنګونه کړل
تللي انګازي ئي د تکبير تر کهکشان دي
دا مجاهدان دي دا مجاهدان
دروميي سنګرونوته په مينه ځي روان دي
دا مجاهدان دي دا مجاهدان
دا سلامي مينه ده، خوندلري شرينه ده، خوندلري شرينه ده
داچي په لکونوله اسلام ځني قربان دي
دا مجاهدان دي دا مجاهدان
دروميي سنګرونوته په مينه ځي روان دي
دا مجاهدان دي دا مجاهدان
مات ئي سره پوځونه کړل، ويښ ئي ولسونه کړل، ويښ ئي ولسونه کړل
ديرئي په نړي کي شرمولي کافران دي
دا مجاهدان دي دا مجاهدان
دروميي سنګرونوته په مينه ځي روان دي
دا مجاهدان دي دا مجاهدان

غوا ړي اسلامي نظام ، نه مني دهري نظام ، نه مني دهري نظام
ځي د جنګ ډګر ته نو میا لي قهرمانان دي
دا مجاهدان دي دا مجاهدان
د روم سنګر ونو ته په مینه ځي روان دي
دا مجاهدان دي دا مجاهدان
کفر او تور تم سره ، هر باطل ستم سره ، هر باطل ستم سره
کړي به جهاد و نه با همت افغانان دي
دا مجاهدان دي دا مجاهدان
د روم سنګر ونو ته په مینه ځي روان دي
دا مجاهدان دي دا مجاهدان
دا د (غزنوي) بچیان ، دا د ابدالي بچیان دا د ابدالي بچیان
دا د (حنیفي) دستر هدف برا در ان دي
دا مجاهدان دي دا مجاهدان
د روم سنګر ونو ته په مینه ځي روان دي
دا مجاهدان دي دا مجاهدان

۱۳۶۸/۱۰/۲۹ هـ ش جهاد کلی

# هلته دلته

هلته ماتم هلته ژړا وخورم
دلته کټ کټ دناز خندا وخورم

هلته دسرووینو لښتی بهیږی
دلته مزو دلته جفا وخورم

دلته لګیا دی ښی ښکلی جوړه وی
هلته می ورا نوطن بیا بیا وخورم

هلته یتیم په کړیکو کړیکو ژاړی
دلته سیلونو تماشا وخورم

دلته آرام آسوده ژوندته ګوری
هلته دتوپ او ټانګ درزا وخورم

هلته انسان په سرو لمبوکی سوزی
دلته جیفانو تویتا وخورم

دلته لوټونوسره لوبی کیږی
هلته دکونډو واویلا وخوړم

هلته په وینو غرونه بوټی سره شول
دلته دغدر انتها وخوړم

دلته په ژوند زمونږه لوبی کوی
هلته دویمی کر بلا وخوړم

هلته کورونه شول له سیلمی میراث
دلته زمونږ په سر سودا وخوړم

دلته نفاق له خپله حده تیر شو
هلته دبور وو یرغو غاو خوړم

هلته دپیغلو هیلی خاوری شولی
دلته رندانو بی حیا وخوړم

دلته خیانت کوری موجونه وهی
هلته تورتم په آریانا وخوړم

یو ( حنیفی ) دخلکو زړونه چیری
بل ئی ترخی ترخی وینا وخوړم

۹ / ۸ / ۱۳۶۹ هـ ش جهاد گلی پبی پیښور

# نه می زړه څنی صبرېږی

نن می زړه دمدینی په طرف کیږی
هغه لوړی منا ری می بیا یا دیږی

یا مسرغه وای چی الوتی په هوا وای
له غمو نو می زړګی پسی څوریږی

ای نسیمه یا رته وایه سلامو نه
چی دا خوا رمین دغم په اورسوځیږی

نه قدرت نه می طاقت شته نه ورتلای شم
نه دولت شته نه دید ن راته رسیږی

ځما حال له جدائی څنی خرا ب دی
نه وصال شته نه می زړه څنی صبریږی

(حنیفی) بې تشنه لب له دنیا ځمه
په زړګی می دمرګی شمال وریږی

۱۳۵۲ ه ش لوګر

# څو به ګونګی یم؟

څو به نا ست یم پته خوله څو به ګونګی یم
څو به بت غوندی بی غږه تش لرګی یم
نیت می کړی نور به سپین درته ویل کړم
څو به ستا خوښی د پاره ورین تندی یم

څو به ستا خاطر د پاره ضمیر وژنم
څو به تا نه نظر و چا و سپیلنی یم

ما خو ستا د پاره دیر څه په ځان تیر کړل
مګر ستا په وړاندی تش په نوم سړی یم

ستا له لاسه می سری وینی هدر دومی
وا وره زه د بت شکن محمود لمسی یم

ما خو فتحه درته را وړه له سنګرنه
ته تیرنه شولی له خپل شخصی نظرنه

*   *   *

ما خو وکال بی شمیره کړا وونه
ما ت را مات می کړه دروس وحشی پوځونه

ستا په ویل او قوماندو می وینه ورکړه
ورځ تر بلی می تا وده کړه سنګرونه

ستا ویل ځما لبیک ځواب وو
پدی لړکی می زغملی تکلیفونه

کورمی دک دی له بیوز له یتیمانەو
په ژرا ژرا کری پلارته اوازونه

هرەخوا دبو رو ورا رو چیغی اورم
لەچشما نوئی راڅی اوشکی رودونه

تیرشوم تیرشوم زه له مالداوله سرنه
تەتیرنەشولی له خپل شخصی نظرنه

* * *

ماویل تەبەڅما په غم غمجن ئی
تەبەڅما پەکرا وونوکرا ومن ئی

څما تترپه وینو رنگ زره می پارەدی
ماوی تەبەراسره پەزره دردمن ئی

څما دتن په وینو هره تیره سرەشوه
خدای[2] خبرچی ته لاڅه تەهیله من ئی

کورمی ورا ن کلی می گد جوما ت می وران شو
تەخندیری خوبش خندان په هر وطن ئی

حنیفی بەستا له کرونەلیونی شی
تەورگد دزیروگلوپه چمن ئی

زرەمی چوی ددی دهرله هنرنه
تەتیرنەشولی له خپل شخصی نظرنه

جهادکلی ١٣٦٩/۴/١٨ ه ش

# د وینی نذرانه

زه د جهان نیا نونا کړدو کړم دیوانه
غواړی چی می وتړی ولچکا و زولانه

وخت په وخت جوړیږی را ته خلکه دسیسی نوی
څوک می زبیښی وینه څوک می پلوری رندانه

چا می په ګریوان کی د غرض لاس را بند کړی دی
څوک بیا را ته بولی د بښکیلو نوترانه

یو خوا فتنګر و دفتنو جال غوړولی دی
بل خوا می پوره نده د وینی نذرانه

یو پلو می کورنه دوحدت جنازه باړشوله
بل پلو را خوشی شول لاسونه بیګانه

ته و لو جلادانو می دمرګ فیصله کړی ده
لاس د مرستی را کړی بی غرضه دوستانه

ما پەهرډگرکـــی دطا غـوت خونـه خــرا بـەکـړه
هروخت جنگیدلــی یم پەنـــره مردا نـــــه

خپل جنگ‌ا وجها دبــه ترهغه پوری جاری ساتـم
څوچی لـه‌ا لحا دەپا کــه نکـړم آ ســـتا نــــه

زەدمیړنی مرویـس نیکـه پـه تـغرنا ست یمـه
ساتـم خپلـه میـنه دمولاپــه یـــا را نــــه

زەلـه (حنیفی) سره ا وړەپرا وړه تلــەکـو م
دا نگوبـه لمبوتـەپتنگ وا را وپــر وا نــــه

۱۳۶۹/۴/۱۴ هـ ش چرا ت

# مناجات

ربه غواړمه غفران ستا له درباره
اميدوار يم هر زمان ستا له درباره

گناهونه مې بې شميره دي خاونده
عفوه غواړم دعصيان ستا له درباره

دغفلت په خوب ويده يم پاکه ربه
بيداري غواړم دځان ستا له درباره

نيک عمل نه لرم وړاندې وارختا يم
عمل غواړم په قرآن ستا له درباره

دا لعين مې بدو لارو لره بولي
خلاصون غواړم دشيطان ستا له درباره

حنيفي يمه رنځور په گناهونو
دمرض غواړم درمان ستا له درباره

# زړه ته

ځما زړګیه! هوسونه پریږده
دا د مزو نشو خوندونه پریږده
ستا د خوښو په چمن اور شو پوری
پریږده زړګوټی دا خوښونه پریږده

ستا د هوس خونه ویجاړه وینم
دا ستا خوښی په غم لتاړه وینم
چې وی پری خوښ هغه جونګړه نشته
درسره غم غاړه په غاړه وینم

اوس په دردیږی په دردونو باندی
د خپل ولس په کړاوونو باندی
ستا له تاتوبې لیږدیدلی خوښي
دا وره لمبه شه په غمونو باندی

څومره ساده ئی وه زړګیه! ځما
اوس هم غولیږی لیونیه! ځما
درسره ښائی چې کړم کړم شی
ته روغ رمټ ئی نازولیه! ځما

د حنیفی زړه اوریدل نکوی
خبری اوری خو منل نکوی
وطن دی وران نکه دکمون بریدونو
منمه دا چې ته زخمی ئی خوږل نکوی

باغوانان ۱۳۶۹/۵/۱۱ ه ش

## دیتیم آه نه به جور درته توپان شی

دا سی وخت شوچی غدا رغندلی نشم
سپین تەسپین او تورتەتورویلی نشم
نەپوهیږم چی بەژبەرانه پری شی
خدای کوورونو داسی کړه زغملی نشم

څما دزغم کاسه لبریز شوه راخوشیږی
دقلم څوکەمی نوره نه دیل کیږی
ګکەغدردنهضت متی کړی خو څی
چی همت ویده کوم نەویده کیږی

کەمی ګوتی رانەپری او سرقلم شی
کەمی هډ میده میده مرګ پدی دم شی
بیابەهم خاینەسترګی درنه باسم
نوربه کلەڅما متی درنه تم شی

کەمی خدای عمل ونطفەبدی خنثی کړم
دا دغدرفا رمو له بدی تباکړم
چی ترخولەغدا ری تو بګاږنشی
رانەواوره پەجهان بەدی رسواکړم

دمهجورولس بەلاس ستا بە ګریوان شی
حنیفیان بە درپسی لکه زمریان شی
ای ظاهرپەلباس سپین پەاصل سوره!
دیتیم آه نەبه جوړ درته طوفان شی

دجهادکلی ۱۳۶۹/۴/۲۰ هـ ش

# بهاره غوړشه!

بها ره غوړ شه ځما خبره وا وره!
دستا را تلو ته لاوز کا رنيو
جنګا وجها د دی ملحدينوسره
ستا هو سو نو ته تيا رنيو

بها ره غوړشه ځما خبره وا ره!
غرونه ميري دی رنګينه په وينو
چی لاله وی ريدی به څه کومه
وطن سورګل دی بنا ئسته په وينو

بها ره غوړشه ځما خبره وا وره!
دلته هرګوټ کی شهيدا ن پرا ته دی
لما نځلی نشوستا ميلی او خوشی
مونږ ته کرم کړم زخميا ن پرا ته دی

بها ره غوړشه ځما خبره وا وره!
ستا با را نو ته موا ره نشته
ځما په هيوا دکی دی دوينو با را ن
دستا ګلو نو ته موا ره نشته

بها ره‌غورشه څما خبره وا وره!
دشهیدا نووینو گل تهو کلی
دجها د گرم سنگرونه گوره
دجنگ دگرته مو زلمی وتلی

بها ره‌غورشه څما خبره وا وره!
هلته را درومه چی وطن ا زا دشی
بیا (حنیفی) پەگرا ن وطن دیره‌شه
چی دمرگ کندی ته‌لاهوا لحا د شی

جها دکلی ۱۵/۳/ ۱۳۶۹ هـ ش

# افغانستان جوړ وو

دسوکالی پهلوری ځونوی جهان جوړ وو
پهپاکووینودوبا ره افغانستان جوړ وو

دالحا دخونه بکړوورا نه دالله په کمک
دهمتونوغیرتونولوی کاروان جوړ وو

دخپلواکی پهلوری ځووړاندی قدم پهقدم
دسرهښکیلاک نابودلوتهښهپلان جوړ وو

دمظلوما وښکی بهکړوپاکی کهموساوی پهتن
سوځودښمن دځمکی سرورتهنیران جوړ وو

کلی پهکلی ښارپهښار موداتړون کړی دی
هرخوا هرلوری کمونیزم تهزندان جوړ وو

دآریانا لهدنگو غرونه پاریدلی یومونږ
ځوملحدینوتهنړی نهگورستان جوړ وو

سرهیرغلگرمولهتپا تیوبی نهپه تیښته لاړه
پهنوکرانوئی شبخون سیلی توپان جوړ وو

آرام بهنهکووترمرگهدا موهودکړی دی
دروڼ سبا پهلوری درموخراسان جوړ وو

دآزادی بیرغ بهلوړکړودنکوغروپه سرو
افغانستان نهبهدگلوگلستان جوړ وو

د(حنیفی) داگرمی اوښکی هیرولی نشو
استوگنځی نهبی دمینی باغستان جوړ وو

۱۳۶۸/۱۱/۶ هـ ش باغوانان

